# حرکت

شپاړسم کال، لومړۍ، پرلپسې ۱۱۴مه ګڼه،
عقرب۱۳۹۸ل، ربیع الأول۱۴۴۱هـ ق، نومبر۲۰۱۹م

د افغان ولس قاتلینو ته ښښنه
او د داعشي مجرمینو ژغورنه څه ښيي؟!

د افغانانو ختیځ کورونه ولې ورانیږي؟







سید آباد ولې نیویارک په امن شي!

ننګرهار کې داعشي ملیشو
ستره ماتې وخوړه ...



- داعشیان څنګه د "ماتې" او سلکیو حال ته ورسول؟
- دغني هوايي دهلېزونه!
- یو تصویر چې، له ډېرو رازونو یې پرده پورته کړه!

طالبان
ولې جګړه کوي؟

زندګی و خدمات شهید
الحاج ملا عبدالسلام سعادت تقبله الله




علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه

شپاړسم کال، لومړی، پرلپسې ۱۱۴مه ګڼه،

عقرب۱۳۹۸ل، ربیع الأول ۱۴۴۱هـ ق، نومبر۲۰۱۹م

**امتیاز :**

**دا متیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

ګڼون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۵۰۰ کلداري |
| امریکا : | ۷۰ ډالره |
| اروپا : | ۷۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۳۰ افغانۍ<br>۶۰ کلداري |


**یادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.


تخنیکي چارې:  تخنیکي څانګه



**پتې :**

srak_111@yahoo.com


## لړلیک

| ګڼه | عـنـوان | مخ |
|---|---|---|

بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله



# د افغان ولس قاتلينو ته بښنه

## او د داعشي مجرمينو ژغورنه څه ښيي؟!

راپورونه وايي د امريکا ولسمشر ډونلډ ټرمپ خپل دوه هغه عسکر چې په افغانستان کې د بېګناه ولسي وګړو د وژلو له امله محاکمه کېدل بښلي دي.

د کماندو ځواکونو غړي ماټيو ګلستين په ۲۰۱۰ز کال کې يو افغان بزګر قصدا وژلی و، او لومړی بريدمن کلينټ لورانس بيا په ۲۰۱۲ز کال کې تر خپل لاس لاندې عسکرو ته پر دروتش لاسو افغانانو باندې د ډزو کولو امر کړی و، چې په نتيجه کې يې دوه تنه ووژل شول. لورانس په ۱۹ کاله بند محکوم شوی و، ۶ کاله بند يې تېر کړی و، خو د ټرمپ پرېکړې يې سزا ورمعاف کړه. د سمندري ځواکونو يوه بل عسکر ته، چې عراق کې د جنايت ترسره کولو له امله يې رتبه ټيټه شوې وه، بېرته ترفيع ورکړل شوې ده.

د امريکايي ولسمشر له دې غيرمنصفانه پرېکړې جوتيږي چې د بشري حقونو علمبرداره امريکا د بشر قيمتي ژوند ته څومره احترام لري. دا ډول اقدامات په ناروا جګړو کې ښکېلو امريکايي عسکرو ته د جناياتو ترسره کولو لپاره لوی زړه ورکوي ځکه پوهيږي چې د کوربه هېوادونو ټپل شوي حکومتونه يې د محاکمې وس نه لري او خپل يې معافوي.

امريکا په تېرو دوو لسيزو کې د نورو هېوادونو په پرتله زموږ په خپل هېواد کې زيات جنګي جرايم کړي خو څوک د پوښتنې نشته. امريکا نه يوازې دا چې پخپله د جنګي جرمونو ترسره کوونکي بخښي، بلکې د هغو بشري ادارو او محکمو لاسونه هم ورلنډوي او کواښي يې څوک چې په افغانستان کې د امريکايانو لخوا د ترسره شويو جنايتونو ترسره کولو هڅه کوي.

په تېر ۲۰۱۸ز کال کې د جرمونو نړيوالې محکمې غوښتل چې په افغانستان کې د امريکايي ځواکونو لخوا ترسره شوي جنګي جنايات وڅېړي، خو امريکا وګواښله او د محکمې پر څارنوالې يې د متحده ايالاتو د وېزې ورکړه بنده کړه.

له بده مرغه، په ګران هېواد افغانستان کې مېشت يرغلګر امريکايي ځواکونه د کابل د غلام رژيم د هغه بدنام ترون له مخې له قضايي تعقيبه مصؤن دي چې په ۲۰۱۴ز کال کې يې د خپل واک په لومړيو ساعتونو کې دننه لاسليک کړه. له همدې امله د امريکا ترڅنګ د کابل ادارې چارواکي هم د اشغالګرو لخوا په ټولو ترسره شويو جنګي جنايتونو کې مسؤل دي، چې يو وخت به يې که د خدای عزوجل رضا وه حساب وواېي.

د ټرمپ لخوا د جنګي مجرمينو د بخښل کېدو خبرونه داسې مهال ورکول کيږي چې کابل ادارې د هېواد په ختيځ ننګرهار ولايت کې سلګونه هغه داعشيان اوقاتلين ژغورلي ،پناه يې ورکړې، چې د سلګونو بېګناه هېوادوالو په وينو يې لاسونه سره دي. کابل رژيم تېر کال په جوزجان کې هم چې کله اسلامي امارت دداعشي مليشو پرضد پراخ تصفيوي عمليات وکړل نږدې ۲۵۰ داعشي مجرمين يې په الوتکو اورنجرو کې پورته کړل او خوندي سيمو ته يې يوړل . د يرغلګرو امريکايانو او د فتنه اچوونکو بښل کېدل او دمزدور رژيم له لوري داعشيانوته پناه ورکول ښيي چې امريکا او کابل رژيم باالعموم د انسانو او باالخصوص د افغانانو وينو ته څومره ارزښت ورکوي. خو دوی بايد بېغمه نشي –يوه ورځ نه يوه ورځ به عدالت پرې پلی کيږي.



# ننګرهار کې داعشي مليشو ستره ماتې وخوړه،

## ټولې سيمې ونيول شوې، پاتې تر تعقيب لاندې دي

لکه څنګه چې پوهېږئ داعش د دې زمانې يوه فتنه ګره ډله ده چې د پخوانيو خوارجو په شان له خپلو پلويانو پرته تقريبا په ټول اسلامي امت د تکفير حکم کوي. دغه ډله چې د نړۍ په ګوټ ګوټ کې يې اسلامي خوځښتونو ته درانه زيانونه اړولي، په لسګونو زره مسلمانان يې وژلي، د مسلمانانو په بازارونو، مساجدو، تعليمي ادارو، متبرکو مقاماتو او مجتمعاتو کې يې درنې چاودنې کړي او ټول قوت يې د مسلمانانو د وينو په بهولو لګولی دی. دغې فتنه ګرې ډلې غوښتل چې د اسلامي نړۍ د نورو برخو غوندې په افغانستان کې هم د فتنې اور بل کړي. اشغالګرو او ګوډاګي رژيم هم د دوی د تشهير، تقويې او اکمال لپاره منظم فعاليت ترسره کاوه. تر څو د اشغال پر ضد روان مقدس جهاد ورباندې بدنام، مسلمانان ورباندې قتل، مجاهدين ورباندې تضعيف او د فرقوي نزاع اور ورباندې تازه کړي.

اسلامي امارت چې د مکار دښمن د هرې دسيسې خنثی کول او د خپل جهاد، مجاهدينو او مسلمان اولس دفاع او ساتنه خپل مسؤليت ګڼي له پيله يې د دغې فتنه ګرې ډلې د مخنيوي او محو کولو هڅې پيل کړې.

په دې لړ کې د الفتح عملياتو په جريان کې د روان ۲۰۱۹ ميلادي کال د ۹ مياشتې په ۲۰ تاريخ په ننګرهار کې د اسلامي امارت مجاهدينو د داعشي مليشو په ضد پريکنده او پراخ عمليات پيل کړل.

عمليات د ننګرهار له شيرزادو ولسوالۍ څخه پيل شول تر اچين ولسوالۍ پورې د ننګرهار ۷ ولسوالۍ چې د داعشيانو فعاليت په کې روان وو په ټوليزه توګه له داعشي ميلشو څخه پاکې شوې، چې تفصيلات يې په لاندې ډول دي:

ــ شيرزاد:

په شيرزادو ولسوالۍ کې لګړ سر، لته پرخه، زونډې سر، ميلوه، ارې سر، سرې تيرې، ووټ، تورکمر، جندله، مرغه، ړندوکي، تره، دروی، کنډوالې، ځپری، وچ لګړ سر او د لغړ ځپري سيمې په ټوليزه توګه له داعشيانو څخه فتحه شوې.

ــ خوګياڼي:

په خوګياڼو ولسوالۍ کې وډيسار ، زاوه، کوډالۍ، چکاوو، اسمان قلعه، د زاوې تنګی، چنارګی، کمه زاوه، وزيرو تنګی، ځپری، جړ، متين، چرګی سر، کچکولی سر، باغ چينه، غونډارو سر، خترېځی، مشين دره، مياه ګان، ملايانو کلی، سپن خوره، ميرزاعلي کلی، ډم تيره، کوړم، څمڅۍ، غرنجالۍ، انار مينه، وچ لګړ، سکندره، ګودره، ابراهيم، ترم، ښکارزن سر، پنګو چم او غوړه ځيږي ټولې سيمې له داعشي فتنه ګرو څخه پرلپسې پاکې شوې.

**ــ پچیرآګام:** په پچیرآګام ولسوالۍ کې اګام تنګی، توره بوړه، سلیمانخیلو تنګی، پچیر تنګی، هزارناو تنګی، میلوه، مرخانۍ، سالي ګل، زیارت سر، مرغه، لوړه مینه او پنکځی سیمې په ټولیزه توګه له داعشیانو ونیول شوې.

**ــ هسکه مینه:**

په هسکه مینه (ده بالا) ولسوالۍ کې شیخ آب کلا، ترخانۍ، اوغز تنګی، مچی کنډو او کځۍ سیمې له داعشیانو فتحه شوې.

**ــ کـــوټ:**

په کوټ ولسوالۍ کې کځونه، کوټ تنګی او خړکۍ سیمې له داعشیانو ونیول شوې.

**ــ سپین غر:**

په سپین غر ولسوالۍ کې خروه، مامند تنګی او خوړ سیمې له داعشیانو څخه پاکې شوې.

**ــ اچـــین:**

په اچین ولسوالۍ کې پیښه، تختې او باغ دره سیمې چې د داعشیانو وروستۍ ځاله هم وه د الله تعالی په نصرت فتحه شوه.

د پورته ولسوالیو له یادو شوو سیمو څخه د داعشي میلشو شړل د دې باعث شول چې د الله تعالی په نصرت د ننګرهار ولایت په ټولیزه توګه له داعشي فتنې څخه نجات پیدا کړي او د دوی وروستۍ ځالې هم ویجاړ شي.

په دغو پریکنده عملیاتو کې د داعش د مهمو قومندانانو په ګډون (۱۹۳) تنه ووژل شول، (۱۳۰) تنه ټپیان شول.

په جګړو کې سلګونه میله سپکه او درنه وسله خورا ډېر مهمات، آسونه، قچرې، موټر او موټرسایکلونه ونیول شول.

د عملیاتو د پای په شیبو کې هغه داعشیان چې د اچین ولسوالۍ په تختو سیمو کې د ورستي سنګر په توګه پاتې وو، د کورنۍ غړي ښځې او ماشومانو په ګډون ټول (۸۵۹) تنه کیدل د کابل اداري سره یو ځای شول.

د دغو داعشانو لپاره د کابل اداري ټانګونه سیمې ته راغلل او د شپې په تیاره کې یې داعشیان او د هغو کورنۍ د مجاهدینو له محاصرې څخه وایستې.

د اسلامي امارت لخوا د ننګرهار په ولایت کې د داعش ډلې ته سخت ګوزار ورکړل شو، او د ننګرهار مظلوم او بیچاره ولس له دغه شر څخه د تل لپاره په امان شو. الحمدلله والمنة

له کله نه چې په هیواد کې د داعش په نوم فتنه ګره ډله را وټوکیده، د اسلامي امارت د مجاهدینو لخوا یې د مخنیوي هڅې وشوې چې په تیرو پنځو کلونو کې له هلمند، زابل، پکتیکا، غور، جوزجان او دادی اوس ننګرهار څخه په تدریجې ډول له منځه یوړل شول او الحمدلله ولس یې له شر څخه په امن کې شو.

د داعشي فتنې په ضد د اسلامي امارت د مجاهدینو عملیات په داسې حال کې ترسره شول چې امریکایي اشغالګرو او د کابل اداري استخباراتي اونظامي ارګانونو په کلکه له داعش څخه ننګه کوله، د هغو په ګټه یې د اسلامي امارت په مجاهدینو بمونه اورول، د داعش ملیشوته یې وسلې او مهمات رسول او د سختې او محاصرې په وخت کې یې خپلې الوتکې او هلیکوپترې د هغو د نجات لپاره سیموته استولې.

د مجاهدینو لخوا په ننګرهار کې په داعش ځپلو سیمو کې که د داعش کوم عناصر غرونو ته تښتیدلي وي د هغوی پسې تعقیبي عملیات او د سیمو تصفیه جریان لري.

ذبیح الله مجاهد د اسلامي امارت ویندوی

۱۴۴۱/۱۱/۲۰هـ ق

۱۳۹۸/۸/۲۶هـ ش ــ ۲۰۱۹م




# د داعشي فتنې وروستۍ سلګۍ دي

بریالی ختیځوال

روان« ۲۰۱۹ زکال اکتوبر په ۲۷مه » دامریکا ولسمشر « دونلډ ترمپ» سپینه ماڼۍ کې خبریالانو ته وویل: د داعش ډلې مشر- «ابوبکر البغدادي» د دوی ځواکونو وژلی دی

خبریالانوته «ټرمپ» وویل: تیره شپه ( داکتوبر۲۶مه) دامریکا په تاریخ کې یوه شپه وه؛ لکه سپی ووژل شو او په دغو عملیاتوکې دامریکا دپوځ ۸څرخي الوتکوبرخه واخیسته

ټرمپ وویل په هغه کور چې بغدادي پکې پټ شوی و، امریکایي ځواکونو چاپه واچوله او بغدادي په یوې سمڅې کې په ځان پورې تړلي چاودیدونکي مواد وچول. وایي: چاودنه کې د بغدادي دوه ماشومان هم وژل شویدي.

ډونالډ ټرمپ وویل: پدې عملیاتو کې روسیې، ترکیې، عراق او کردي ملیشو هم د دوی سره مرسته کړې. بل پلو ترکیې او روسیې هم ویلي دي چې د بغدادي په اړه یې معلومات شریک کړي وو.

دټرمپ په وینا پدې عملیاتو کې د بغدادي ګڼ شمیر ملګري او وسله وال هم وژل شوي خو امریکایي عسکرو ته پکې هیڅ زیان ندی رسیدلی.

دټرمپ دپورته څرګندونو او دعوو په اړه بیا هم شکونه موجود وو،خو وروسته د«ابو حمزه القریشي» په نامه یو تن چې ځان یې د داعش ډلې ویاند معرفي کړ د ټیلګرام کانال له لارې پخپل خپور کړي غږیز پیغام کې د ابوبکر البغدادي اود داعش د پخواني ویاند « ابو حسن المهاجر» د وژل کیدو پخلی وکړ.نوموړي وویل: چې دبغدادي وروسته «ابو ابراهیم الهاشمي القریشي-» د داعش ډلې د نوي امیر او مشر په توګه ټاکل شوی دی.

د یادولو وړ ده چې د داعش ډلې بنسټګر او مشر- «ابوبکر البغدادي» د امریکا ځانګړو ځواکونو په دعوه د سوریې په شمال کې «ادلب »ښار کې د ځانګړو عملیاتو په ترځ کې ووژل شو.

.د امریکا د بهرنیو چارو وزارت په یواعلان کې دعوه کړې چې د داعش ډلې ویاند «ابو حسن المهاجر» د تیرې سې شنبې پر ورځ د سوریې د «جرابلس ښار» ته نږدې یوه سیمه کې د ځانګړو عملیاتو په ترځ کې و وژل شو.

ابوبکر البغدادي څو کاله مخکې عراق کې د ځینو سیمو اوښارونو دنیولو وروسته خپل خلافت اعلان کړ او دټولې نړۍ دمسلمانانوڅخه یې وغوښتل چې دده سره بیعت وکړي، او هم یې هغو مسلمانانوته ګواښونه وکړل چې ور سره دبیعت کولونه ډډه کوي، هغه دخپلو مخالفو جهادي ډلو پرخلاف وسله پورته کړه او په عراق او سوریه کې یې په زرګونو عرب مجاهدین په شهادت ورسول

بیا هم په نړۍ کې دټرمپ لخوا دبغدادي دوژل کیدو اعلان ته دشک په نظرکتل کیدل، حتی چې دروسیې پشان هیوادهم باور نه کاوه چې رښتیا دي ابوبکر بغدادي وژل شوی وي، لیکن د داعش ډلې دنوي ویاند( ابو حمزه القریشي) لخوا داعلان وروسته تر یوڅه حده دهغوی دغه شک کم شو



ددې لپاره چې امریکا وښيي چې دوی لخوا دبغدادي دوژل کیدو دعوه رښتیا ده، دامریکا پوځ لخوا د هغو عملیاتو یوه ویډیو هم رسنیوکې خپره شوه په کومه کې چې د سوریې په شمال کې د اسلامي دولت یا داعش مشر- ابوبکر بغدادي وژل شوی و.

ویډیوکې خپاره شوي انځورونه امریکايي پوځیان هغه پټن ځای ته د نږدې کېدو پر مهال ښيي چې ابوبکر بغدادي پکې اوسېده په دې سره .بغدادي د استوګنځي لاندې سمځې ته منډه اخلي او هلته پخپل باروتي واسکټ ځان وژني، دحیرانتیا وړداده چې په ویډیو کې ښودل شوی استوګن ځای د عملیاتو څخه څو شېبې وروسته دامریکایي الوتکو څخه په توغندیو وویشتل شي او ونړول شي.

لنډه داچې داخبره اوس یقیني ده چې بغدادي وژل شوی او نورپه دنیا نشته، اوس یوه ساده پوښتنه داده چې کله اسامه بن لادن دامریکایانو له لوري په ورته عملیاتوکې دپاکستان په ایبټ آبادکې شهید کړای شو،نو له امله یې په نیړدې ټوله اسلامي نړۍ کې دقهر اوغوسې یو لوی زوړ،ماتم او دغم حالت طاري شو، ځای پر ځای خلکو دهغه غایبانه جنازې وکړې،ختمونه او دعاء ګانې یې پسې وکړې، لاریونونه او احتجاجونه وشول، امریکایان وغندل شول او اسامه بن لادن ته د قهرمان په توګه پیرزویني وړاندې کړای شوې

هم دا راز کله چې امیر المؤمنین «ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله» د طبعي ورپیښې ناروغۍ له امله وفات شو او څه موده وروسته یې خبرخپورشو ،سملاسي په افغانستان اونړدې ټوله اسلامي نړۍ کې دخوا خوږیو اوهمدردیو څپې په غورځنګ راغلې، ځاي په ځای خلکو ورپسې ختمونه او عاء ګانې پیل کړې ،حتی چې په عربي نړۍ کې هم ورته دخلوص نه ډکې پیرزوینې وړاندې شو، په شاندارو القابو او صفاتو وستایل شو او رسنیو کې وربانډې ګڼ شمیر لیکنې، مقالې او مضامین چاپ شول

بیا کله چې دامریکایانو لخوا شهید امیر المؤمنین« ملا اختر محمد منصور رحمه الله» په یوناځوانمردانه برید کې په شهادت ورسید، هم په ټوله اسلامي نړۍ کې دهغه دشهادت په دردونکې پیښه مسلمانانو دامریکا پرضد غبرګونونه وښودل، امریکایان یې وغندل، دعاء ګانې او ختمونه وشول ځا پرځای تعزیتونه واخیستل شول، لیکن دبغدادي په مړینه نه چا هغه ته دعاء وکړه او نه چا

وربانـدې ویـر او مـاتم وکـړ اونـه دامریکایـانو پرضـد کـوم لاریون او احتجاج ولیدل شو ؟

ښکاره ده دشیخ اسـامه بـن لادن رح، ملامحمـد عمـر مجاهــد رح او شــهید مــلا اخترمحمــد منصــور رح سره دبغدادي پرتلنه بې ځایه ده،زکه هغوی رښتیني مجاهـدین او مخلصین وو، مسلمانانو وربانډې کلک بـاور درلـود چې داسلام او مسلمانانو دسرلوړۍ لپاره یې جهاد ته مخـه کـړې وه او دامریکــایي اســتعمار دظلمونــو او وحشــتونوڅخه مسلمانانوته نجات ورکول یې هدف و، هغوی پخپلو جهـادي کارنامو سره داسلام او مسلمانانو دعزت شـمله هسکه کـړه هرچې بغدادي او دهغه ډله ده، هغوی په مسـلمانانو داسې نارواظلمونه او وحشتونه وکړل چې خلکونه یې دامریکایـانو ظلمونـه او وحشــتونه هیـر کـړل، بغــدادي او دهغــه ډلــه دامریکایانو نه هم زیات ظالمان او وحشیان ثابـت شـول پـه دې وجه بغدادي په مسلمانانوکې منفور شو، مسلمانانو تـرې نفرت اوکرکه راغله.

دداعش یا بغدادي لخوا په مسـلمانانو بانـدې دشـویو ظلمونو او وحشتونو داستانو دراسپړلو لپاره سوریې او عراق ته دتلو حاجت نشته دلته افغانستان کې د داعش وحشـیانه اوکرغیړن داستان ددې دلیل دی چې دداعشـیانو ظلمونـه نه ښبونکي دي، په خاصه توګه دهیواد پـه ختـیځ (ننګرهـار) کې یې په مسلمانانو کوم ناروا ظلمونه وکړل شاید پـه تـاریخ کې ساری ونلري نومیالي علماءِ کرام او مخور قومي مشرـان او په سـلګونو مجاهـدین او طالبـان یـې شـهیدان کـړل، للـه الحمد چې داسلامي امـارت زړور مجاهـدین تـرې وروسـته نشول او دډیرو لویو قربانیو په ورکولو یې داسې ځپـل چې ان شاء لله بیا به سر پورته نکړای شي

## داعش دچا پروژه وه؟

که څـه هـم پـه دې بـاره کـې لا نـورو دقیقـو څیړنوتـه ضرورت دی او پـه اړه یـې ښـه ثقـه قـراین او شـواهدمندل پکاردي،البته دامعلومه اوښکاره ده چې دداعشـیانو اعـمال او دهغوی کـړه وړه دمسـلمانانو اعـمال او کـړه وړه نـه دي، دوی چې کوم ظلم اووحشت دمسلمانانو سره کوي، یا کومـه دښمنې او عقده ورسره لري، دا دمسـلمان کارنشي۔ کیـدای .په دې وجه داباور په سلو کـې اتیـا سـلنه کیـدای شي چې داعش دامریکایانو یوه خدماتي پـروژه وه چې وربانـدې پـه عــراق، ســوریه او افغانســتان کــې یــې مســلمانان وځپــل، اوغوښتل یې چې نورهم ورته رشد ورکړې خو پـه افغانسـتان کې یې هغسې چې د دوی( امریکایانو) تمه وه رشد او ریښې ونشـوای غځـولی پـه مقابـل کـې یـې اسلامي امـارت کلـک مقاومت وکړ، او په هیواد کې دریښو غځیـدومخنیوی وکـړ، په دې لړکې ددینه لوی او کره ثبوت بل څه کیدای شي چې پخپله دامریکا لخوا په افغانستان باندې تپـل شـوی پخـوانی ولسمشر حامد کرزی اعتراف کوي چې داعشیان امریکایانو پخپلو طیارو کې افغانستان ته راوستې او هم یې پخپلـو بـې بیرغه الوتکوکې دیـوې سیمې نـه بلـې سیمې تـه انتقـالوي دنومـوړي پـه وینـا داعشـیان امریکایـانو دافغانـانو دوژلـو اوځورولو لپاره ګومارلي دي

مختصر دا چې داعـش نـه اسلامي تحریـک دی او نـه دمسلمانانودنجات لپاره پورته شوی، داغورځنـګ دمسـلمانانو سره فکراً اوسیاسیتاً دښمنې لري، دمسلمانانو وینې تویـول راوا اوثواب بولي، له نیکه مرغه چې دهیـواد پـه ختـیځ کـې ددې بدمرغه او خبیث بوټي ریښې په ختـودې او داسـلامي امـارت بـاتور مجاهـدین یـې دوروسـتیو کوډلـو او ځـالو پـه ړنګولـو لګیادي،داسلامي امارت دمجاهدینو او مشرانو همت ته سلام دی چې دهیواد مظلومو خلکوته په خاصه توګـه یـې دننګرهـار او کونړپتمنو قومونو اوقبایلوته یې ددې بې پتـه او وحشـیانو څخه نجات ورکړ.

# د داعش تېښته،

## او د چارواکو د دروغجنو لاپو اصلي هدف...!!

ليکنه : ويس افغان

په دوه زره شپاړسم کال کې د افغانستان په ختيځ خصوصاً ننګرهار کې راپيدا شوي داعشيان بالآخره د روان دوه زره نولسم کال د نومبر په منځنۍ لسيزه کې د طالب مجاهدينو له لوري د دوه مياشتنيو پراخو او شديدو عملياتو په ترڅ کې، له داسې شکست سره مخ شول چې په دغه سيمه کې يې له يوه مخه نظامي شتون محوه شو.

سمڅې يې مجاهدينو مکملې ورڅخه تخليه کړې، وسلې، مهمات، بمونه او نور ټول ورکول شوي وسايل ورڅخه پاتې شول، دوی د ډېرو درنو ځاني تلفاتو له زغملو وروسته په نيم ژوانده حالت کې د کابل د ګوډاګي حکومت غېږې ته پناه ور وړه.

پرځای د دې چې مجاهدينو ته ځانونه تسليم کړي؛ په ډلو ډلو روان دي د کابل عسکرو ته ځانونه تسليموي، هغوی يې په الوتکو او موټرو کې خپلو پوځي او استخباراتي مراکزو ته رسوي.

او ورسره اعلانونه کوي چې ګويا د داعش پرضد عمليات همدوی پيل کړي وو، اوس يې داعشيانو ته شکست ورکړ او هغوی ورته تسليم شول، څو ورځې وړاندې له کابل نه ننګرهار ته د مسعود اندرابي په نوم يو وزير راغلی وو، هلته يې د خبريالانو په مخ کې په سپينه ورځ په سپينو سترګو رډ بډ دروغ وويل چې ګويا د داعش پرضد د دوی عسکرو عمليات ترسره کړل اوس دا دی هغوی ورته تسليمېږي.

او نن د صديقي په نامه د اشرف غني يو وياند هم داعش ته د شکست ورکولو دعوه وکړه او زياته يې کړه چې غني خپلو عسکرو ته د داعش د ماتولو مبارکي ورکړې.

حالانکه دا داسې سوچ او ښکاره دروغ دي، چې حتی ماشوم يې هم په ويلو د شرم احساس کوي، ځکه د داعشيانو په وړاندې د کابل ادارې يوه عسکر هم د داعش له پيدايښت نه، تراوسه پورې د هغوی پرضد حتی يو ټک هم نه دی کړی، بلکې برعکس هرکله چې مجاهدينو داعشيان تربريد لاندې نيولي، د کابل حکومتي او بهرنيو الوتکو په سلهاوو ځله د داعش د ژغورنې په خاطر پرمجاهدينو بمباری کړې دي.

خو د کابل ګوډاګي چارواکي ښايي مجبور وي چې د خپلو امريکايي بادارانو په امر هر ډول بې شرمانه حرکات ترسره کړي، هر ډول دروغ د هغوی پخاطر ووايي، د داعش د ژغورنې چارې په رڼا ورځ ترسره کوي، ټول ولس يې د سر په سترګو ويني چې دوی داعشيان د مجاهدينو له کلابندۍ خلاصوي، جلال آباد او مرکز کابل ته يې رسوي، ترڅو يې بيا سره منظم کړي او د هيواد په يو بل

گوتې کې یې چیرې ځای پرځای کړې او د مجاهدینو پرضد یې د ملیشه یی ځواک په توګه وکاروي.

په هرصورت واقعیت دا دی چې د افغانستان په ختیځ خصوصاً ننګرهار کې د داعش په وړاندې له دوو میاشتو راهیسې پیل شوي د مجاهدینو عملیات اوس اوس د داعش په مکمل ماتې سره پای ته نږدې شوي. او په دې توګه د امریکا او ګوډاګي حکومت هغه قیمتي پروژه له شکست سره مخ شوې چې دوی په خورا عمیق پلان او لوړو مصارفو د دې پروژې په بریالي کیدلو کې هڅې پیل کړې وې.

د ذبیح الله مجاهد د وینا له مخې، د داعش پرخلاف د مجاهدینو دا عملیات د روان ۲۰۱۹ میلادي کال د ۹مې میاشتې پر۲۰ مه نیټه پیل شوي وو چې نږدې دوې میاشتې یې وخت ونیو او بالاخره د ننګرهار هغه ۷ ولسوالۍ چې داعشیان پکښې موجود وو، تصفیه شوې.

په داسې حال کې چې داعشیان د کابل ادارې د پوځي، لوژستیکي او هوایي ملاتړ څخه په پټه او ښکاره ډول ښه برخمن وو؛ بیا هم له ماتې سره مخ شول، په وینا یې نږدې ۱۹۳ داعشي-ملیشې ووژل شوې، ترسلو زیات ټپیان، او ۸۵۹ تنو ته د کورنیو او بهرنیو ځواکونو لخوا د طالبانو له محاصرې نجات ورکول شوی او محفوظو دولتي اماکنو ته انتقال شوي دي.

له داعش نه د امریکا نسبتاً پټ او د کابل ادارې څرګند ملاتړ اوس داسې یوه موضوع ده چې نږدې ټوله نړۍ وربانده اګاهي لري، په کراتو مراتو ثابته شوې چې دوی د داعش پالنې، سمبالونې، تمویلونې، او بیا ژغورنې پرلپسې ګرندۍ هڅې کړې، دوی غوښتل چې داعش پیاوړی شي او په پایله کې یې د اسلامي امارت د جهادي صف د ماتولو لپاره داسې وکاروي لکه څنګه چې یې په شام او عراق کې د هغې سیمې د ریښتینو مجاهدینو د ځپلو لپاره ورنه کار واخیست او بالآخره یې پر دوی هم مخ را واړاوه. او مشر-بغدادي یې ورته وواژه.

خو د بهرنیو یرغلګرو په دغه خطرناک پلان باندې مجاهدین له لومړي سره پوهیدل او متوجه وو، همدا وجه ده چې په زابل، فراه، جوزجان درزاب، کونړ او بیا ننګرهار کې مجاهدینو هغوی وځپل او د دښمن دا ستراتیژیکه دسیسه یې له ستراتیژیکي ماتې سره مخ کړه.

څرنګه چې امریکایان په لومړي سر کې ډېر جدي وو، په څرګنده یې د داعش د سپوټ هڅې پیل کړې وې په ځلونو یې په الوتکو کې د ننګرهار په غرونو کې مخ پټي وسلوال دیسانټ کړل، سیمه ایزو خلکو یې آزادو رسنیو ته د سترګو لیدلي حالات وویل، پارلماني او نورو جګړو پوړو دولتي چارواکو هم اعترافات وکړل، همدارنګه تېرکال د روژې په میاشت کې چې د کابل په میرویس میدان او شاوخوا سیمه کې څو کانتینره بې نمبره وسلې ونیول شوې؛ د کابل امنیه قوماندانۍ څه موده وروسته وویل: چې د نیول شوې وسلې مالک چې د یوې بهرنۍ کمپنۍ مشر- و؛ د امریکا د سفارت له لارې دوی ته مراجعه کړې ترڅو دا نیول شوې څو کانتینره وسله بیرته ورته وسپارله شي.

دا ډول رسوا کار په نړیواله کچه د امریکا د بدنامۍ سبب شو او د دوی نړیوال رقیبان یې ورته متوجه کړل، په عین حال کې د اسلامي امارت سیاسي او مطبوعاتي هڅو هم دنیاوال د امریکا په دې خطرناکه لوبه خبر کړل، نو ځکه امریکا یوه اندازه ځان غلی کړ او د داعش سپوټ ته یې د کابل اداره تنها موظفه کړه، چې د ملي امنیت له لوري یې پوره پالنه کیدله.

دا چې داعشیان ونه توانیدل چې د مجاهدینو په وړاندې مقاومت وکړي، له ناکامۍ سره مخ شول؛ نو د کابل ګوډاګیو چارواکو د دې ترخنګ چې په دروغو د دې لاپې پیل کړې، چې ګویا د داعش په وړاندې دوی عملیات وکړل او مات یې کړل؛ په عین حال کې یې د تسلیمۍ په نامه د پاتې داعشیانو د ژغورنې او خپلو دولتي مراکزو ته د هغوی د انتقال لړۍ پیل کړې، ترڅو یې بیا له امریکایي بادارانو سره په ګډه له سره تنظیم کړي، خو دا امکانات یې نور تقریباً له لاسه وتلي دي. بیا به هیڅکله ونه توانیږي چې د افغان ولس د ځورولو او د مجاهدینو په وړاندې د خنډ جوړولو لپاره دا خونسا شوې فتنه بیا را ژوندۍ کړای شي. ان شاءالله

پای.........!

# د طالبانو له لوري داعش ته ماتې

## د امریکا بله فارموله هم ناکامه کړه..!

لیکوال: م.جمیل باور

د اشغال په لومړیو کلونو کې چې امریکا سیمې او افغانستان ته د یو سوپرځواک په ډول راغله، په سلګونو ډول-ډول رسنی یې په دې موخه استخدام کړې چې وښیي، جګړه ورسره ناشونې ده. او دغه راز یې په لومړیو کې ټوله توجه د اشغال تغذیه شویو عسکرو اکمال ته وه.

له تقریبا یوې لسیزې وروسته هم امریکا له اجیرو عسکرو هغه اهداف ترلاسه نه کړل، چې دوی یې اراده لرله، بلکې ورځ تربلې یې پرخلاف خوځښت او پاڅون زیاتېده، نو امریکا له نظامه بهر د یو بل رامنځ ته کولو ته مخه کړه او د ولسي پاڅون والو(اربکیانو) په نوم ملېشې یې جوړې کړې.

که څه هم په لومړیو کې یادو ملېشو د خپل ځان مؤثر ښودلو لپاره ډول-ډول جنایات ترسره کړل؛ خو د اسلامي امارت پر وړاندې یې ډېر دوام ونه کړای شو، اسلامي امارت په خورا ځېرکتیا او تدریج ډېرو ولایتونو کې دا فتنه له منځه یووړه او ملت یې د دې سترې غمیزې څخه خلاص کړ.

د امریکایي شنونکو په باور د یادو تکتیکونو د ناکامی اصل عامل داوه چې مذهبي رنګ یې نه لاره؛ نو امریکا داځل د خپلو اهدافو د تحقق لپاره د یوې داسې ډلې جوړولو تابیا وکړه، چې مذهبي رنګ ولري. د دوی په ګمان دا ځل به دا ډله د ملت له مرستې برخمنه شي او د دوی لپاره به د اسلامي امارت په وړاندې مؤثره ثابته شي.

دې نوې جوړې کړې ډلې ته یې ډېر امکانات برابر کړل، د هیواد په لویو ښارونو او د عامو خلکو د اجتماع په ځایونو کې یې خونړي بریدونه وکړل.

خو اسلامي امارت، امارت چې د ملت د ګټو او ارزښتونو رښتینی مدافع دی، د مکار دښمن د هرې دسیسې خنثی کول او د خپل جهاد، مجاهدینو او مسلمان اولس دفاع او ساتنه خپل مسؤلیت ګني، له پیله  په ډېره میړانه او تدبیر د دې فتنې په وړاندې ودرید د دغې فتنه ګرې ډلې د مخنیوي او مهارولو هڅې یې پیل کړې.

په هلمند، پکتیکا، زابل،جوزجان، کونړ، لوګر او دا دی اوس یې ننګرهار ولایت کې د دې ډلې په وړاندې رغنده او پرېکنده عملیات وکړل. ننګرهار کې یې د روان ۲۰۱۹ میلادي کال د ۹ میاشتې په ۲۰ مه نیټه د داعشي ملیشو په ضد پریکنده او پراخ عملیات پیل کړل.

د اسلامي امارت ویاند ذبیح الله مجاهد په خپرپاڼه کړې کې رسما ننګرهار کې داعش ته د ماتې خبر ورکړ، د ده په خبره یاد ولایت په بشپړه توګه له داعشي فتنې څخه نجات پیدا کړ او د دوی وروستی ځالې هم ویجاړې شوې، د داعش د مهمو قومندانانو په ګډون (۱۹۳) تنه ووژل شول، (۱۳۰) تنه ټپیان شول.

په دې توګه مجاهدین وتوانېدل د امریکا په لاس جوړه شوې درېیمه فرموله هم ناکامه کړي او ملت، سیمه او نړی یې له شره خوندي کړي.

# داعشیان

## چا د "ماتې" او سلګیو حال ته ورسول؟

نسیم فاتح

کابل حکومت یو ځل بیا هڅه کوي چې د داعش ډلې پر ورانډې د طالبانو یوه بله بریا ځان ته منسوبه کړي .

د کابـل حکومـت د دفـاع وزارت لـومړي مرسـتیال، ډګرجنرال یاسین ضیاء، په دې وروستیو کې ویلي چې دولتي ځواکونو د هېواد په ختیځ کې "ځینې بریاوې" ترلاسه کړې او دلته داعش ډله "د ماتېدو او له منځه تللو" په حال کې ده. نوموړي زیاته کړې چې د عملیاتو پر مهال "زیات شمېر" نور داعشیان ورته تسلیم شوي دي.

له تېر څه باندې نیم کال راهیسې، د هېواد په ختیځو کونړ او ننګرهار ولایتونو کې طالبانو د داعش ډلې پر ضد پراخ عملیات پیل کړي دي. دا عملیات، چې د طالبانو ځانګړې قطعې یې پر مخ وړي، اوس پرېکنده مرحلې ته داخل شوي دي. داعش په دواړو ولایتونو کې پراخې سیمې له لاسه ورکړې او د حاکمیت ساحه یې څو صعب العبور غرونو ته ورتېوله شوې، چې هغه هم د محاصرې په حال کې دي .

د عملیاتو پر مهال لسګونه داعشیان قتل او ژوبل شوي، او لسګونه نور یې طالبانو او حکومت ته تسلیم شوي دي. د تیرې اکتوبر میاشتې په وروستیو کې څه باندې ۷۰ داعشیان او کورنۍ یې، چې بهرنیان هم پکې وو، حکومت ته تسلیم شول. دا رنګه طالبانو ته هم لسګونه بهرني جنګیالي او کورنۍ تسلیم شوي دي .

کونړ او ننګرهار یوازیني هغه ولایتونه دي چې داعش په ۲۰۱۵ز کال کې د خپل خلافت تر اعلان وروسته پښې پکې ټینګې کړې. د تورو بیرغونو له پورته کېدو سره سم یې په دې دوو ولایتونو کې د جنګیالیو او د واک د سیمو سلنه زیاته پورته شوه، چې د طالبانو په ګډون حکومت، امریکا او ګاونډیو هېوادونو ته یې اندېښنې ورولاړې کړې .

د حکومت او امریکا په پرتله طالبان یوازینی هغه ځواک و (او دی) چې د دې ډلې پر ضد یې جدي او قاطع ګامونه واخیستل - او بریاوې یې هم ترلاسه کړې. په هلمند، زابل، کندز او څو نورو ولایتونو کې یې داعش ډله په نطفه کې خنثا کړه، او په لغمان او جوزجان کې یې هم تر لږ مودې تېرېدو وروسته له منځه یووړه .

پر دې سترګې نشي پټېدای چې د داعش څو لوړپوړي مشران او ګڼ شمېر جنګیالي (لکه حافظ سعید، حسیب لوګری، قاري حکمت او نور) د بهرنیو او ځواکونو په هوایي بریدونو کې وژل شوي، خو له دې پرته ګډو ځواکونو په تېرو پنځو کلونو کې د داعش پر وړاندې، د طالبانو په څېر، کومه د پاموړ بریا نه ده ترلاسه کړې - برعکس د دې ډلې پر وړاندې د طالبانو نږدې هره ستره بریا یې ځان ته منسوبه کړې ده .

د ساري په ډول، د ۲۰۱۸ز کال په جولای میاشت کې طالبانو د هېواد په شمال جوزجان ولایت کې د داعش پر ضد عملیات پیل کړل، چې د داعش په تس نس کېدو پای ته ورسېدل. هغه مهال حکومت او امریکایي ځواکونو دواړو دا بریا ځان ته منسوبه کړه .



د عملياتو پر مهال، په درزاب او قوشتپه ولسواليو کې د نږدې ٦۰۰ پرتو داعشيانو له ډلې يې تر ۱۵۰ زيات قتل او تر ۱۰۰ زيات ژوبل شول، او لږترلږه ۱۴۰ نور يې طالبانو ژوندي ونيول. کله چې پر داعشيانو د محاصرې کړۍ راتنګه شوه، په وروستيو ساعتونو کې د داعش مشرانو له حکومته مرسته وغوښته. وروسته د جوزجان لپاره د داعش د مشر او د هغه د مرستيال په ګډون نږدې ۲۴۰ داعشيان حکومت په چورلکو کې يوووړل .

کله چې طالبانو د داعش تس-نس کېدل اعلان کړل، کابل حکومت ژغورل شوي ۲۵۰ داعشيان تسليم شوي اعلان کړل، او ويې ويل چې د امنيتي او دفاعي ځواکونو د پراخو توپچي او ځمکنيو عملياتو پر مهال يې وسلې پر ځمکه کېښودې. (په خواله رسنيو کې په خپرو شويو انځورونو کې ښکارېده چې تر تسليمېدو وروسته لا هم د داعش جنګياليو په اوږو کې کلاشينکوفونه راځوړند وو.)

هغه مهال په افغانستان کې د مېشتو بهرنيو ځواکونو عمومي قومندان جنرال جان نيکولسن هم دا د کابل حکومت د ځواکونو "بريا" وبلله. د افغانستان د بيارغونې لپاره د امريکا د څار ځانګړې ادارې (سيګار) هم د ربعې په راپور کې د جنرال نيکولسن د وينا په نقل سره دا "د داعش پر ضد يوه بريا" بللې وه .

د کابل حکومت دفاع وزارت لکه څنګه چې د هېواد د شمال د داعش په له منځه وړلو کې کومه د پامووړ لاسته راوړنه نه درلوده، دارنګه ختيځو ولايتونو کې يې هم کوم پرېکنده عمليات نه دي کړي. خو د ننګرهار د عملياتو پر مهال داسې لا شوي چې د داعش پر ضد پر جنګېدونکو طالبانو باندې هوايي بريدونه او چاپې وهل شوې دي .

د داعش په له منځه وړلو، يا کمزوري کولو، کې د حکومت او امريکايي ځواکونو ناکامي يوه، او د دې ډلې پر وړاندې د طالبانو برياوې ځان ته منسوبول يې بله رسوايي ده – خو محاله ده چې لمر دې په دوو ګوتو پټ شي.




# دعربوله بهاره د داعش ترخزانه

حسن مومند

امريكا ديونه زيات ځل دمنځني ختيځ او لويديځې آسيا نه دتللو اعلانونه کړيدي ؛ د امريکا له لورې يو شمېر داسې اقدامات هم رامخې ته شويدي چې ترې دوتلو نښې ښکارېدې خو ځو ورځې دمخه دامريکا دنظامي عملياتو په نتيجه کې دداعش ډلې مشر-ابوبکر البغدادي هلاکت چې پخپله ټرمپ اعلان کړ اوس دډېرو په اند داپېښه دامريکا دوتلو په خبره دمهر ثبتولو معنی لري .

دیادولو وړده چې دروان میلادي کال دپيل دورځو نه دداعش دختمېدودعوې کېدلې اوپه زړه پورې خبره پکې داده چې اول روسې ، ايران او دشام دولت دداعش له منځه وړل خپله توره ګڼله اوبيا امريکا په عراق کې ددې ډلې دجړړو ويستلو دعوې پيل کړې ؛خو دابوبکر البغدادي په هلاکولو رښتيا هم چې امريکا خپله تله درنده کړه ؛ دنړۍ نه يې پرې کريډيټ واخست اود ډېروخلکو په فکرونوکې يې داخبره کېنوله چې په رښتيا هم نړۍ ددې ډلې دشرونو نه په امن کې شوه.

دالبغدادي پر ضد ترسره شوي عمليات ټرمپ ،عسکري قيادت او دباندنيو چارو يو ټيم په امريکا کې ديوځانګړاطاق نه څارل .

امريکا وايې چې دپلان له مخې داکتوبر په ۲۶ مې نېټې دامريکا په وخت ماښام ۵بجې ديو نامعلوم ځای نه دامريکا دسپيشل فورس چورلکې راپورته او ۷۰ دقيقې پس تر خپل منزل ورسېدې ؛ ددې چورلکو هدف دشام په ادلب ولايت کې دباريشا په نوم دترکې دپولې نه ۵ کيلومتره لرې کلي کې يوه وداني وه ؛ امريکا وايې دې ودانۍ ته په ور رسېدو له دې ودانۍ نه په يوې چورلکې ډزې وشوې چې ورسره سم له چورلکې نه په ودانۍ توغندی وتوغول شو ؛ تر نيم ساعت ددواړولوروترمنځ ډزې تبادله شوې خو نيم ساعت پس چورلکه په کيناستو بريالۍ شوه اوفوځ ځمکني عمليات پيل کړل ؛ د ودانۍ په غټه دروازه کې ماينونه وو نوځکه دېوالونوکې سوري وکړای شول او فوځيان دننه شول ؛ ودانۍ کې دننه تونلونه وو ؛ امريکايې فوځيان دخپلوجاسوسوسپيو په مرسته تونلونه ته ورننوتل ؛ دامريکايې فوځيانونه دځان ساتنې لپاره البغدادي يوداسې تونل ته ننوت چې بل سر يې بند و بيا يې تونل کې دننه انفجاري موادوته انفجار ورکړ چې له امله يې دی اودده درې کوچنيانو ژوند له لاسه ورکړ او دتونل کيناستو له امله دهغه جسد له پېژندګلوی ووت ؛ دپېژندګلوی لپاره يې ډې اين ای معاينه ترسره شوه اوبيا يې مړينه تائيد اوپخپله ټرمپ اعلان کړه امريکايان وايې پدې عملياتو کې د البغدادي دوه مېرمنې هم وژل شويدي او ۱۱کوچنيان ژوندي راويستل شويدي ؛ امريکا دا دعوی هم کوي چې پدې عملياتو کې کوم امريکايي فوځي ندی وژل شوی .

ويل کېږي چې دترکې فوځ دالبغدادي يونږدې ملګری نيولی اوپه عراق کې مېشتو امريکايي فوځيانوته يې سپارلی و چې دهمده نه امريکايانو دالبغدادي په اړه معلومات ترلاسه کړي وو.

امريکا وايې چې دروان کال په منځ کې ورته معلومه شوې وه چې البغدادي دشام په ادلب کې دي چې دتېرو ۵مياشتو راهيسې يې دستلايټ سپوږمکۍ په مرسته دهغه څارنه کوله ؛ کله چې هغه دې ودانۍ ته راغلو نوپرضد يې دفوځي عملياتو حکم وشو.

امریکا وایي چې ددې برید لپاره تلونکې چورلکې دترکې دهوايي کرښو او دروسي ترواک لاندې سیمو له فضانه تېرې شوی وې ؛ ټرمپ وایي چې سره له دې چې روسان په رابطه کې نه وو اچول شوي خو دمزاحمت پر ځای روسانو معاونت وکړ.

ګڼ شنونکي پدې اند دي چې دالبغدادي وژل تصادفي پېښه نه وه بلکې دا دامریکا دځانګړې فوځي کړنلارې له مخې رامنځته شوې چې ددې پېښې نه تر ډېره حده دامریکا ارادې هم روښانه کېږي.

دچارو دپوهانوپه اند امریکا اوس نړۍ ته داپیغام ورکول غواړي چې په منځني ختیځ کې یې نور کار پوره شو نو که ترې کډې باروي د چا پرې داعتراض حق نشته.

که همدا فکر سم وګڼو نوپوښتنه دا پیداکېږي چې پرعراق دیرغل پرمهال چې امریکا دکومو اهدافوخبره کوله په هغو اهدافو کې یې کوم هدف ترلاسه کړچې اوس دتللو خبرې کوي ؟

یمن کې جنګ روان دی؛ په لبنان کې ټول خلک ددولت پر ضد راپورته شویدي او سعد الحریري استعفا ورکولو ته اړ شوی ؛ په عراق کې ولس دامریکا دلاسپوځي دولت پر ضد پاڅون کړی ؛ په خلیج کې دایران سره ترینګلتیا او دابنای هرمز په هکله اختلافات خپلو وروستو پولوته رسېدلي دي

په عراق، شام یمن او لبنان کې د ایران مداخلې، نفوذ؛ ښه په سپین سترګۍ د شیعه وسلوالو ډلو تمویل اونظامي مرستې بلکې ورسره اوږه په اوږه دمخالفینو پر ضد جنګېدل لا روان دي چې له امله یې دامریکا متحدین عرب هېوادونه ډېرې زیاتې اندېښنې ښکاره کوي او دې حالت دراتلونکي په اړه سخت اندېښمن کړیدي.

او ددې ترڅنګ ټرمپ دشام له هغې سیمې نه خپل فوځونه را ویستي دي کومه چې دامریکایي فوځونواو کردي ملېشوترواک لاندې وه.

دلته د دیموکراسۍ د راوړلو اوتقویه کولو سترې دعوې چې کېدلې هغه دعوې څه شوې ؟

که امریکا رښتیا هم له منځني ختیځ نه وځي نو کومه پلمه به دوتو لپاره جوړوي؟ دلته دراتلو اوخپل اشغال ته د دوام ورکولوکوم اهداف به یې چې یادول کوم هدف یې ترلاسه کړیدی ؟

دامریکایانو دخپلو اعترافونوله مخې دامریکاپه لاس دراپیداشوي داعش دمشر البغدادي په وژل کېدو خو دامریکا په وینا دداعش قصه پای ته ورسېده خو نړۍ خبره ده چې دداعش دځپلو په پلمه ۵ سوه زره شامیانو خپل ژوند له لاسه ور کړ ۱۲ ملیونه شامیان بې کوره شول ؛ شام په کنډوالو بدل شو او داعش په لاس چې څومره انسانان وژل شوي حساب یې هیچاته هم ندی معلوم ؛ آیا همدا قتل عام او ستر تخریب دامریکا هدف و ؟

په عربي نړۍ کې د دولتونو پرضد دعربو دبهار په نوم د ولسونو پاڅونونه څواکمن او ددولتونولپاره ډېر وېرونکي وو؛ لویدیځوالو دفرانسې او روسې د انقلابونو سره ددې لاریونونو موازنه کوله او عربو ولسونوته یې د دیکتاتورانونه دآزادی او په عربي هېوادونوکې ددیموکراسۍ د راتلو زېري ورکول.




خونړۍ شاهده ده چې عربانو نه دیموکرات نظام ولید او نه یې هم د دیکتاتورانو نه نجات په برخه شو بلکې داپاڅونونه دبې حده زیات تاوانونو لامل شول ؛ په تېرو ۸ کلونو کې نظامونه ړنګ شول ؛ په هېوادونو کې خطرناک کورني جنګونه رامنځته شول ؛ په ملیونونو انسانان قتل شول ؛ په لسګونوملیونه انسانان دخپلو کورونونه بې ځایه شول ؛آباد ښارونه لوټې لوټې شول؛هېوادونه دتجزیو دلویوخطرونوسره مخامخ شول فقر اوبې کاري اوبې سوادي عامه شوه.

بس همدا دغرب دیموکراسي وه ؛دهمدې دیموکراسۍ زیري یې ورکول اوهمداسې دیموکراسي یې پدې هېوادنوکې غوښتله ځکه چې خپل ناولي اهداف اوشوم پلانونه یې په همداسې دیموکراسۍ کې پوره کېدل.

امریکا ناتواوامنیت شورى دڅومره ستر منافقت ښکار ده په لیبیاکې چې یوشمېر خلکو دمعمرقذافي ددولت پر ضد لاریون کړی و

او ددولت له لورې دغبرګون ښکاره کولو په نتیجه کې څوتنان مړه اوټپیان شوي وو نودنړی دټولو مظلوموخلکو غمخواره امریکا راپورته شوه ناټویې دڅان سره یو ځای کړه ، دامنیت شورى نه یې منظوري واخسته او پر لیبیا یې هوایي بریدونه پیل کړل چې په نتیجه کې یې ښه زیات خلک قتل شول ؛دولت ړنګ شو اوهغه خوشحاله او واحده لیبیا چې په کومه بدحاله او ټوټه شوې لیبیا بدله شوه بیان ته یې اړتیا نشته .

اوس چې په عراق کې داداري فساد ؛ بې کارۍ ؛ د اجناسو دقیمتونو دلوړوالي ، فقر اودبرباد اقتصادپر ضد ولس پاڅون کړی ، بې ساري سترلاریونونه روان دي ؛ دعراق هر ښار ته فوځ ورغوښتل شوی ؛ دبغداد په شمول دهېواد په ټولو ښارونوکې دشپې له مخې ګرځ بندیز وي اوتر اوسه ددولتي امنیتي ځواکونو له لورې لـه ۲۵۰ نـه زیات تنان وژل شوي او دڅزره نه زیات ټپیان دي .

امریکا ، ناټو یا دامنیت شورى ته د دولت له لورې په لاریون کونکو داظلم او وحشت نه ښکاري او دلیبیا پرضد د شوي اقدام نه کوم کوچنی اقدام یې پر ضدهم اړین نه بولي .

عراق یواځنی هغه هېواد دی چې امریکا یې اداره ړنګه ، حاکم یې قتل اودلته یې دخپل حریف ایران په حمایت یې پکې خپله لاسپوڅې اداره جوړه کړه اوپه تېرو ۱۷ کلونوکې دمالکي ، عابدي اومهدي اداري دامریکا او ایران دواړو دحمایت نه برخمنې وې چې دا هم دامریکا ډېر لوی منافقت دی .

که رښتیا هم دمنځنې ختیځ نه دامریکا کډې بارېږي نو داسې ښکاري چې دامریکا دتلونه پس به داتشه روسان او ورسره په ملګرتیا کې چین ډکه کړي خو دا نده معلومه چې کړنلاره به یې دامریکانه بدله وي اوکه دامریکا په څېر ؟ دابه وخت وښايي .

ډېر خلک فکر کوي چې دالبغدادي په مرګ داعش له منځه ولاړ ؛ ماته دافکر سم نه ښکاري ؛ داعش چا راپیداکړی و اودڅه لپاره یې راپیدا کړی؟ پدې هرڅوک پوه دي خومسلمان ځوانان چې ورسره په کوم احساس ملګري کېږي هغوئ پدې نه پوهېږي نوڅکه اوس دایوسخت دریځه فکر ګرځېدلی دی چې دخپل باني په وژل کېدو به کمزورى اوشاید په څوبرخو وویشل شي خو بیخي له منځه تلل یې ګران ښکاري .

پدې هم موږټول پوهېږو چې په ټول منځني ختیځ کې دداسې سخت دریځې ډلې شتون دلویدیځ ډېره ستره اړتیا ده نو له منځه تلل یې لویدیځ په هیڅ صورت کې نه غواړي .

امریکا دایران سره په ښکاره څومره لویه دښمني کوي او ایران په ښکاره دامریکا پرضد څومره خطرناکې ځرګندونې کوي خوهرڅوک دې دا خبره یاده ساتي چې که ایران دامریکا پرضد له دې هم تېزې او خطرناکې ځرګندونې وکړي امریکا به دایران سره هیڅکله هم هغه څه ونکړي لکه دمعمر قذافي دلیبیا اودصدام حسین دعراق سره یې چې وکړل ځکه چې امریکا پر ټولو عربودایران مصنوعي وېره دائمه ساتل غواړي ترڅو له همدې وېرې دسعودي په څېر بډای هېوادونه دامریکااونور لویدیځ نه دجنګي طیارو ،وسلواونظامي وسایلو اخستلو ته دوام ورکړي او ددوئ دوسلو فابریکې روانې وي.

امریکا چې دبهر نه د ایران دمصنوعي وېرې دوام غواړي همداسې په عربو هېوادونو کې دننه د داعش دوېرې دوام هم غواړي ترڅو له دې لارې هم هماغه اهداف ترلاسه کړي اوهم ددوئ دشتون له لارې هغه مسلمانان تل دعتاب لاندې وساتي کوم چې دغربي اشغال پر ضد جنګېدلي دي .

پرافغانستان اوبیا عراق باندې دیرغل نه پس چې مسلمان ملت دصلیبي اتحادپر ضد ډېر سترجهاد وکړ،په افغانستان یا عراق کې شیعه ګانو پر صلیبي یرغلګرو یوه لوټه هم ور ونه ویشتله بلکې تر ننه دمجاهدینو پر ضد ددې صلیبي اشغالګروسره اوږه په اوږه ولاړ دي او دمجاهدینوپرضد ښه په اخلاص جنګېږي ؛ دمرګ برامریکا نارې که دوئ هر څومره پورته کړي امریکا اونور لویدیځ یې ښه پېژني چې له دوئ پرته ورته بل هیڅوک داسې وفادار لاسپوڅي نه شي ثابتېدای .

نو امریکا به دداعش دشتون هڅه کوي تر څوددې ډلې په شتون کې ټول احساساتي ځوانان دې ډلې سره یوځای کېږي اوپه ټول منځني ختیځ کې ددې ژمنومسلمانانو دهرې سیمې نه غزه جوړه وي؛ تل دعتاب لاندې او محروم وي چې په افغانستان کې د داعش په اړه موږ دامریکا دهمدې کړنلارې عیني شاهدان یو .

محترمو ټولو لوستوالوته معلومه ده چې له جوزجانه ترکنړ اوننګرهاره چې کله داسلامي امارت مجاهدینو داعشیان محاصره کړیدي دامریکا په حکم ورپسې دلاسپوڅې اداري چورلکې رارسېدلې دي او دمحاصرې نه یې روغ رمټ ویستلي دي.

لنډه داچې دابوبکر البغدادي په مړینه پر داعش خزان راغلی خوله منځه تللی ندی ؛ دالله تعالی پرېکړه به څه وي ؟ پدې الله تعالی ښه خبر دی خو اسبابوته چې وکتل شي نوترهغې به له منځه نه ځي ترڅو چې یې په شتون کې دنړی دزبرځواکونو ګټې وي .

# د افغانانو ختمین کورونه ولې ورانیږي؟

م مبصر

له تېرو دوو کلونو راهیسې بهرنیو او د هغوی تر لاس لاندې کورنیو عسکرو خپلو ځمکنیو او هوایي عملیاتو ته زور ورکړی، چې له امله یې جګړه خپل اوج ته رسېدلې ده. د ګډو ځواکونو په دې عملیاتو کې هره ورځ د ولسي وګړو لسګونه کورونه، باغونه او هستوګن ځایونه ورانیږي .

ګډ ځواکونه د ولسي وګړو کورونه زیاتره په بمبارونو، چاپو او تعرضي عملیاتو کې قصدا تخریب او له منځه وړي. خو د ولسي هستوګن ځایونو یې له جګړې سره څه؟ په دې لاندې کرښو کې به په دې اړه وغږیږو چې بهرني او کورني ځواکونه د کورونو له تخریبولو څه موخې لري او ولې یې ورانوي .

وسله وال پوځونه ولسي مېشت ځایونه زیاتره وخت هغه مهال ورانوي کله چې ترې د خطر احساس کوي او په ورننوتلو، هلته د دښمن په ختمولو او په نیولو کې یې پاتې راشي .

د دې ډول ویجاړی یوه نمونه د ۲۰۱۰ز کال د اکتوبر په ٦مه د کندهار په ارغنداب ولسوالۍ کې د تاروک کلاچه په نوم د یوه کلي بشپړ ویجاړېدل او د څو نورو شاوخوا پرتو کلیو تخریبېدل دي .

۲۰۱۰ په افغانستان کې د مېشتو بهرنیو ځواکونو لپاره تر ټولو خونړی کال و. په دې کال په افغانستان کې د اوباما د ستراتیژۍ له مخې نږدې یو لک امریکایي عسکر مېشت وو. د icasualties په نوم د عراق او افغانستان په جګړو کې د امریکایي او ناټو ځواکونو د تلفاتو شمېرونکې رسنۍ د ارقامو له مخې، په ۲۰۱۰ز کې ۷۱۰ بهرني سرتېري وژل شوي وو. (دا په تېرو اتلسو کلونو کې تر ټولو لوړ شمېر دی) .

د اوس په څېر، په ۲۰۱۰ز کال کې هم د امریکا په مشرۍ ایتلاف خپل ټول زور کاراوه څو، د دوی په ګومان، طالبان مذاکراتو ته مجبوره کړي .

د ۲۰۱۰ز کال د اکتوبر په ٦مه، د امریکایي ځواکونو ۱-۳۲۰ Combined Joint Task Force ځواک د ارغنداب ولسوالۍ تاروک کلاچه کلی له الوتکو او ځمکنیو توپونو په راویشتل شویو ۴۹۲۰۰ پاونده بمونو او راکټونو له خاورو سره برابر کړ. پر خسرو سفلی او لوړ بابر کلیو باندې هم همداسې بمونه ووربدل. د ۱-۳۲۰ خاص ځواک قومندان، ډګرمن ډیوډ فلاین، وویل، دا کلي یې له دې امله هوار کړل چې طالبانو په ماینونو پوښلی و او له تخریبولو پرته یې بله لار نه درلوده .

د فلاین په خبره په هرو ٦۰ مترو کې یو ماین و. امریکایي ځواکونو نږدې ۱۰۰ ورځې پرلپسې هڅه کوله چې کلي ته ورننوځي خو ناکام شول. فلاین وایي، له همدې امله یې په کلي کې پاتې خلک راوغوښتل او غوښتنه یې ترې وکړه چې یا دې ماینونه وروښیي او یا به یې هم کورونه والوزول شي. د اکتوبر په



٦مه، دا کلي د هوا او ځمکې له لارې په بمونو او توپونـو وويشتل شـو او د نقشې لـه مخې ورک شـو. فلايـن وايـي د کورونـو لـه تخريبولو پرته يې بله لار نه درلوده .

امريکايي ځواکونو وروسته بېرته د خلکو د زړونـو او ذهنونـو د ګټلو په موخه د دې کلي جوړول پيل کړل. د نيويارک ټايمز د يـوه راپور له مخې، امريکايي ځواکونو د ۲۰۱۰ز له سپټمبر بيا تر نومبر مياشتې پورې، يوازې په کندهار کې ۱۷۴ کورونـه پـه بمبـارونو او ټانکونو ويجاړ کړل.

د ارغنداب د کليو په څېر، يوازې دوه يا درې کاله وړاندې پـه عراق او سوريه کې هم بسته ښـارونه ويجـاړ کـړل شـول. د عـراق حلب، رقه او موصل ښارونه نړيوال ائتلاف له داعشه د نيولـو لپـاره له خاورو سره برابر کړل. د شمېرو له مخې، يوازې په موصـل کـې تر ۴۰ زره زيات کورونه ويجاړ شول. د عراقي حکومت په څېـر، د سورېې د واکمن بشارالاسد ځواکونو هم ستر ښارونه کنډواله کـړل او په همدې ډول يې مخالفين پکې وځپل .

اوسمهال کورني ځواکونه د ميدان ودګ د سيدآباد ملي خپلـو کلي کورونه په دې بهانه ورانوي چې ګويا طالبان لـه همـدې ځايـه بريدونه پرې کوي .

همدارنګه، ګډ ځواکونه د طالبانو تر لاس لاندې سـيمو کـې جوماتونه د طالبانو مرکزونه بولي، له همدې امله يې پـه چـاپو کـې تقدس ته له پام کولو پرته په خلاص لاس ورانوي څو پـه دې ډول، د دوی په ګومان، طالبان له مرکزونو محروم کړي .

د يوځای په لاندې کولـو يـا هغـه کـې د موجـود ګـواښ پـه ختمولو کې د ناکامۍ ترڅنګ، انتقامي حس هم کلـه ناکلـه وسـله وال پوځونه د ولسي وګړو کورونو تخريبولو ته هڅوي. موږ داسـې ګڼ شمېر پيښې ليدلې او په اړه مو يې اورېدلي چې ګډو ځواکونـو د بېرته تللو پر مهال د کليو او کورونو داسې ځايونه وران کړي چې د کوم خاص مقصد لپاره د استعمال احتمال يې هم نه وي .

خو د ولسي مېشتځايونو ورانول د ورانوونکو لپـاره بـاالعکس نتايج درلودای شي ځکه په ډول ولس ترې متنفـر کيـږي او دښـمن يې هم ترې تبليغاتي استفاده کوي. امريکايـانو د ارغنـداب تـاروک کلاچه کلي هم يوازې د همدې لپاره بېرته ودانول پيـل کـړل چـې د خلکـو لـه زړونـو خپـل نفـرت وبـاسي. د دې ډول ورانيـو ځينـې مخالفين د ولسي هستوګنځايونو قصـدا ورانـول د جنيـوا د څلـورم کنوانسيون له ۳۳تمې مادې، چې د دسته جمعي سـزا د ممنوعيـت په اړه ده، سرغړونه بولي .

نتيجتا ويلای شو چې ګډ ځواکونه ولسيـ هسـتوګنځايونه او نور اماکن له دې امله ورانوي چې له هغـوی باالفعـل يـا بـاالقوه د تهديد احساس کوي، د هغې سيمې په نيولو او هلته د تهديد پـه لـه منځه وړلو کې پـاتې راغـلي - او يـا هـم د انتقـام اخيسـتلو او زړه يخولو لپاره.

عابد



# يو تصوير چې، له ډېرو رازونو يې پرده پورته کړه!



دافغانستان ولس, بیچاره او محکوم ولس دی خپلې بې وسي او غریبی دحقیقتونو او واقعیتونو له درک نه ډېر وروسته کړی، پردوی دمسلطو حاکمانو او مشرانو له حاله ترډېره ناخبره وي، ځکه نو دډېرو په جذباتي ويناوو، ديني شعارونو اود هيواد دمينې په قسمونو غوليږي، چې بيا د دې خطا اوسهوې ډېر دروند قيمت هم اداکوي .

همدا لامل دی چې انقلابونه او تراژیدی دلته تمامون نه لري او ديوې پای دبلې دزیږون لامل وي، اهل اونا اهل واک ته رسیږي او پردي لاسونه تل ورته راغځيدلي وي، دهیواد په دغسې حالاتو کې ډېرې ناتراشې لیدل کيږي چې له ډېر جالبیت سره ډېرې دحسرت وړ هم وي .

په دې وروستيوکې رسنيو يوه ويډيو خپره کړه چې له دغې ويډيويي صحنې يې ډېر تصويرونه هم خپاره کړه، دويډيو ټول جريان او تصوير همدې يوه عکس ټکي په ټکي بيان کړ او ټول حقيقتونه يې روښانه کړل، دا تصوير دکابل حکومت د ټولو لوړ پوړو وزيرانو او مشرانو يو تاريخي اويادګاري تصوير و چې ددغه حکومت مشر اشرف غني يې په منځ کې ولاړ و.

په رسنيوکې د دوو امريکايي استادانو په بدل کې د دريو تنو طالب بنديانو دتبادلې خبرونه او ګنګوسي خپاره شوو چې دکابل حکومت يې ډېر ژر اوپه وخت ځواب ووايه اولکه مخکې يې چې ويلي وو د دغو مهموبنديانو تبادله يې سره کرښه وبلله اوله سرې کرښې تېرېده ورته محال و.

خو يوه ورځ وروسته پردغه تبادله داقرار او اعتراف لپاره دغه مشران کتار ولاړ اواشرف غنی يې په منلو غږيده.

هغه څه چې دغې ويډيو په تېره دغه تصوير ماته او زما هر هيوادوال ته راکړل : دافغاني ويني له پښته مې پرې ډېر ترحم راغی او دنهايت محکوميت اوبې وسی له کبله پرې خوابدی شوم، ځکه هغه شور، غاړې، حرکات او اداګانې به چې اشرف غنی په ويناکې کولې ترپايه نه وې، اوپه ټوله معنی په ټولو دجبر او استبداد ګوت څنډنو تور رانګ راوړی و چې له ټولو يې حتی هغه مصنوعي خندا هم اخيستې وه .

د دغې تبادلې سرنوشت لا نن شپږمه ورځ هم نه دی معلوم چې لاهم نه ده ترسره شوې، خو د دغې سناریو! دلوبغاړو عجز او بې وسي ټول ولس له حیرانتیا سره مخ کړ، چې دا څومره لوی بدلون، مهمه پېښه اوکوم جبر و چې ټول یې په یوه کتار درولي وئ ؟ او دټولو رنګونه الوتي وو؟ د دې لپاره خودیوه ویاند، یوه وزیر اویا دسولې دشورا اعلامیه هم بس وه!

معلومه ده چې له سرې کرښې اوښتئ او خپلې توکلې لاړې مو بېرته تېرولې! څکه سړی دبل په ملامتیادومره نه ملامتیږي لکه خپل ضمیر، وجدان او خپله کړې خبر چې سړی څومره ملامتوي . دلته همدا حال و، له خپلو ټولو هغو خبرو تېرېدئ چې زړه مو هیڅکله نه غوښتل .

ولسمشره! تاخو له دې ولس سره ډېرې وعدې کړې! ته خو د ډېرقوت او زور خبره کوې، ته خو وایې چې زه مستقل خود مختاره او منتخب ولسمشر. یم ؟!! ته چې دیوه بندي په اړه خپله پرېکړه نه شې ساتلی! تاته به دا خلک څه امید وکړي او ستا په کړو وعدو به څه ډول باور وکړي ؟ ستا په تېره دوره کې چې په هیواد کوم ناورین تېر شو ایا ته پرې په دې خبره برائت ترلاسه کولای شې چې دادې دبلې دورې لپاره منلي وو چې بیابه یې جبران وکړې ؟؟!

نن درته دایوڅوسپیني خبرې څکه کوم چې تر دې دمه مې ستا په کړو وړو کې تاویلونه کول، خو نن چې څه په ډاګه شول او ولس ته دې کوم محکومیت ښکاره شو، یو بې سواده او له سیاسي شعور ډېر لرې هیوادوال دې هم په حال خبر شو چې ته تر ببرک کارمل هم ډېر محکوم او لاسپوڅی یې! چې دومره بې وسه او بې واکه یې، نو بیا دې بلې دورې ته دا دلیونتوب تر حده لیوالتیا په څه ده ؟

په رښتیا چې تصویر له رازونو پرده پورته کړه او د هغوی ټولې خبرې رښتیا شوې، چې اشرف غني دامریکایانو لاسپوڅی اودهغوی غلام دی، دهیڅ مهمې پرېکړې اختیار نه لري، بلکې مهمې پرېکړې دامریکا له سفارت څخه صادریږي، په ولس د وحشتونو او ظلم مخه نه شي نیولی، هیواد اشغال دی، په افغانستان کې چې څه کیږي ټول یې امریکایان کوي .



د اسلامي امارت د سياسي دفتر غړی شیخ القران والحدیث حضرت

# مولانا سید رسول "حلیم" (مدظله العالی) سره مرکه

**دعصري علومو حقیقت دادی چې د دیني علومو په ترقی او پراختیا کې ډېر تاثیر لري لکه : ریاضي،عربي ژبه، انګلیسي، کمپیوټر، سائنس او طب...**

**۱ -پوښتنه:** جناب شیخ صاحب څرک مجله دخپلو نومیالیو شیوخو او استادانو سره دمرکو او پیژندلو په لړ کې داځل تاسې انتخاب کړي یې ، ترڅو مو درانه لوستونکي او مینه وال دقیمتي ژوند له لوړو ژورو ، علمي تجاربو او نصائحو څخه مستفید وګرځي، نو که مو خوښه وي پیل به یې ستاسي له ځاني تعارف څخه وکړو چې دې فاني دنیا ته مو چیرته اوڅه وخت سترګې پرانیستي ، ابتدایي ، منځنۍ زده کړې مو چیرته ترلاسه او بالاخره فراغت مو چیرته وشو؟

**جواب:**

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله رب العالمین والعاقبة للمتقین و الصلوة والسلام علی اشرف الانبیاء والمرسلین محمد وعلی آله و اصحابه اجمعین.

اما بعد: ستاسو فرهنګي مشرانو او ملګرو څخه ډېره مننه کوم چې ماته مو د سوال او ځواب فرصت راکړ چې دا به لوستونکو ته دعلم د تشویق او رغبت ذریعه شي او هم به یو ډول نصیحت وګرځي .

زما پیدایش د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالي د وزیرو په منطقه کې تقریبا په ( ۱۳۳۳ هـ ش ) کال کې شوی دی.

**ابتدائي زده کړې:** ابتدائي زده کړې مو چې په هغې کې د قرآن کریم ترجمه او د علم میراث کتاب (سراجي) هم شامل وو، د خپل والد محترم خطیب الحاج محمد رسول (رحمه الله رحمة واسعة) او مولوي صاحب احمد غیور څخه په خپله منطقه کې تر شپاړس (۱٦) کلنۍ پورې سرته رسولی دي.

بیا د خپل تره ځوی مولوي اشرف الله مرحوم سره د افغانستان د شمالي د کوه دامن باغ عالم مولوي صاحب ته ورغلم او هم مې دکابل په هودخیلو کې صرف میر زده کړ. بیا دوه کاله مسلسل پینبور ته لاړم او دتهکال پایان مدرسې کې مې د اولې او ثانیې درجې کتابونه ولوستل.

**منځنۍ زده کړې:** په اتلس(۱۸) کلنۍ کې مې دڅمرخیلو له شیخ القران والحدیث محمد جان صاحب مدظله العالی سره په

بتـې کـوټ ولسـوالۍ کـې د دريمـې او ځلورمې درجې درسونه ولوستل.

پـه (۱۳۵۲هـ ش)کـال کې داؤد خان کودتا وکـړه او د ظاهرشاه حکومت يې نسـکور کړ ، نو له دې وروسته د علـم د زده کړې لپـاره پاکسـتان تـه مهـاجر شوم او په دارالعلوم سرحـد پشـاور کـې مـې داخله وکړه، د پنځمې درجې کتابونه مې ولوستل او په (۱۳۵۳ هـ ش) کال کې مې بيا پاکستان ته سفر وکړ او د پنجـاب دګوجرانوالـه ښار په اشرف العلوم مدرسـه کـې مـې داخلـه وکـړه، د وړې دورې کتابونه مې د علامه شيخ القران والحديث مولـوي صـاحب جـلال الخالق (رحمه الله رحمة واسعة) سره چـې د (فـيض البـاري شرح صـحيح البخـاري مرتـب) اود بـدرعالم (رحمـه اللـه) شـاګرد وو، ولوستل او ميبذي، صدرى، سلم ، قاضي ، حمداللـه ، عبـدالغفور او خيالي مې له مولوي صاحب علامه قاضي حميدالله جـان سره د ګوجرانوالـه د شـيرانواله بـاغ مدرسـه کـې ولوسـتل او بيـا مـې پـه رخصتۍ کې دمردان په بخشالي کې د ميراثي بابا سره د ميراثو دوره (ضابطه ميراث سراجي او شريفيه) وکړه.

**لوړې زده کړې:** په کال (۱۳۵٦ هـ ش) کې مې لويه دوره پـه دارالعلوم سرحد پشاور کې شروع کړه چې شيوخ الحديث پـه کـې هريو مرحوم مولانـا محمـود ايـوب جـان بنـوري صـاحب، صـدر عبداللطيف صاحب، کابل بابا جي صاحب او سول کواټر بابا جي صاحب فضل الرحمن ؤ ، دوی ټول د دارالعلوم ديوبند فـارغين او د حسين احمد مدني شاګردان ول. (رحمهم الله رحمة واسعة)

په (۱۳۵۷ هـ ش) کال کې د باړې مارکيـټ مدرسـه اشـاعت الاسلام کې زما دستار بندي او ختم بخاري شريف د عظيم الشـانه تاريخي جلسې په ترڅ کې د شيخ القـران والحـديث مفتـي اعظـم پاکستان پيرطريقت د دارالعلوم حقانيه استاذ الحديث محمـد فريـد رحمه الله رحمة واسعة په لاس وشو او په عين حال کې په همـدې مدرسه کې د وړې دورې په ځينـې کتـابونو او لويو فنونو کې مدرس هم ووم.

**۲ -پوښـتنه:** عزتمنـده : تشويق او باعث مو څـه اوڅـوک وو چې ديني علومو ترلاسه کولو ته مو مخه کړه اياد دطالبې په دوره کې مو دا فکر او اميد وو چې يو وخت به داسې يو جيد او نوميالی عالم او مدرس درنـه الله پاک جوړوي ؟

**جواب:** تشويق کونکی او باعث زما والد محترم وو چې عالم وو او زما بابا هم عالم وو او په عـين حـال کـې زه د پـلار پـه دغـه وخت کې يواځنی ځوی وم چـې د فقهـې او فـارسي کتابونـه لکـه ګلستان او بوستان يې خپله ماته لولول او د فارسي سرنامې خطونـه او رياضي هندسی زده کړی لپاره يې يو عصري معلـم صـاحب تـه هم ليږلم او دغه د فارسي سرنـامې بـه والـد محـترم پرمـا پـه يـادو يادولې او بله نادره خبره د تشويق کولـو لپـاره دا وه چـې زمـونږ پـه ځای کې يو غر دی هغه ته به يې اشاره وکړه ويل به يې که ماته دغه غر د سرو زرو(طلاء) کړي نو زه به خوشحاله او راضي نه شم چـې ترڅو ته عالم نه شې.( الله تعالی دی ترينه رضا شي)

د طالبۍ په وخت کې مې په الله تعالی يقين وو چې علـم بـه راکوي او بيا به مدرس عالم جوړيږم، دغه حسن ظن الله تعـالی پـه ما کې پيدا کړی وو ، الحمدلله نښه يې دا وه چـې د هـر کتـاب پـه حاشيه، يا د کرښو په منځ کې يا په مستقل کاغذ مـا ليکـل کـول، د لغوي ، اصطلاحي معنا يـا د ضـمير د مرجـع يـا د اسـتاذ د خـولې خصوصي نکتې، ددی لپاره چې زه به مـدرس کېـږم چـې دا شـيان راته ياد وي، د ميزان الصرف، زرادي، نحومير او ايساغوجي نـه تـر شرح جامي، شـافيه، نورالانـوار او سـلم العلـوم پـورى، بيـا هغـه کتابونه ټول د شورويانو د وېرې له امله زما اوبښي زمـونږ د هجـرت نه وروسته په زمکه کې خښ کړي وو چې څه وخـت وروسـته يـې راوېستلي وو په زمکه کې خراب او له منځه تللي وو.

**۳ -پوښتنه:** ستاسې دطالبی په دور او وختونو کې عمده سختیاني او مشکلات سه وو او په مخ کې موکله داسې موانع پیښ سوي چې درسونه مو له ځنډ او خنډ سره مخ شوي ؟

**جواب:** په شمالي کې دباغ عالم مولوي صاحب په درس کې وو ، د جدي میاشت کې به واوره وریده ، ما به وظیفه راغونډه وله او په عین حال کې مونږ په ډوډۍ نه مړېدو. داؤد خان چې قدرت طلب انسان وو قدرت ته د کمونستانو په سبب رسیدلې وو . د ظاهرشاه په وخت کې زمونږ استاذان شیخ الحدیث محمدجان صاحب او مولوي میرباش خان صاحب د شیرزادو ، او نور مشران او ما په مظاهرو کې فعال ګډون کړی وو نو په دغه وجهو داؤدخان زمونږ د نیولو اراده لرله ، نو زه د ملګرو سره د دربند د غره د شمشاد پرشا یوه شپه په لاره یې د ( ښارویو وځو په شپول ) کې تیره کړه او بیا پاکستان ته واوښتو دا ټول مزل مو په خپلو پښو پیادل کړی دی، دا د (۱۳۵۲هـ ش) قوس میاشت وه.

په (۱۳۵۳ هـ ش) کال دمیزان میاشت کې بیا پاکستان ته په خپلو پښو د کامې ولسوالۍ څخه روان شو داځل راسره شیخ الحدیث محمدجان صاحب هم وو ، شپه مو په تکلیف سره د افغانستان سرحد ګرو ته ورسوله، صبا بیا په خپلو پښو روان شو په مهمندو کې ماسپښین ناوخته ګنداو ته ورسیدو، ځکه چې په دغه زمانه کې په دغو لاروکې موټر او ګاډي نه وو او په همدغه کال د پنجاب ګوجرانوالې ته لاړو .زما د ژوند نور علمي ، اقتصادي، سیاسي او تدریسي حالات د عجائبو او مشکلاتو څخه ډک دي، الله تعالی دې رضا شي او په دې ټولو مراحلو کې الله تعالی ماته صبر، استقامت او کامیابي راپه برخه ګرځولې ده، الحمدلله.

**موانع:** زه د مور او پلار یوازنی ځوی ووم چې فقر او د داؤدخان له لاسه خطر ، او د طالبی په زمانه کې واده کول راته دعلم دزده کړې لوی موانع ؤ، خو الله تعالی دغه موانع زما لپاره اسانه کړل.

**۴ -پوښتنه:** قدرمنه که ممکنه وي او مناسبه یې بولی دطالبي په دوره کې په خپل تقسیم الاوقات لګ رڼا واچوی چې کله مو کتابونه لوړ او سخت شول ، مطالعه مو څو ساعته کوله ، خوب مو څومره وه او له ملګرو سره تفریح او مجلس ته مو څومره وخت ورکړی وو ؟

**جواب:** الحمدلله زما شوق د مطالعې سره طبعا ډیر زیات و او هم مې ذکاوة ډیر زیات و، د ماسپښین لږ شان قیلوله اود مازیګر لمانځه نه وروسته تر ماښام لمانځه پوری تفریح ، او پاتې وخت مې مطالعه کوله، داسې وخت به راغی چې کله به مامطالعه دشپې تر یوې بجې پورې یا زیاته کوله، داسې مطالعه به ما کړې وه لکه یو مدرس یې چې د تدریس لپاره کوي.

**۵ -پوښتنه:** جناب! که دخپلو څو تنو هغو استادانو نومونه راته واخلی چې پوهیږی علمي فیض او برکت مو زیات ورڅخه اخیستی دی او دهغو خلوص او لورینې مو اوس هم په زړه اوذهن کې نقش دي ؟

**جواب:** الحمدلله زما ټول استاذان ډیر مشفق و، زما سره یې ډیر اخلاص او زیات احسانات کړي دي، الله تعالی دې ترینه رضا او فردوس جنت دې ور په برخه کړي، خصوصا د هزارې مولوي صاحب جلال الخالق او زما مرشد مفتي او شیخ الحدیث محمدفرید صاحب او شیخ الحدیث محمدجان صاحب ډیر تأدیب او اصلاح زما کړې ده او په تعلیم کې یې خاص قسم تاثیر او رڼا موجوده وه. شیخ صاحب محمدجان د دریمې او څلورمې درجې کتابونو تر څنګ اخلاقي تربیه هم راکړې ده. ترجمه او د اسلافو تاریخي کارنامې، د مولانا اشرف علي رحمه الله کتاب "تعلیم الدین" چې خالص اخلاق معاشرتي احادیث په کې و او "جنتي کالی" کتابونه یې راته راوړي و ، او د تلاوت ، نوافلو او تهجدو توصیه به یې کوله.

**٦ -پوښتنه:** که ممکنه وي او په یاد مو پاته وي ، دهغو یوشمیر ذهینو ملګرو نومونه ذکر کړی چې په وړي او لویي دوري کې سره همدرسي پاتي شوي او ستاسي له نظره پکې له ورایه دښو او جیدونو مدرسونو نښې نښاني څرګندیدلې ؟

**جـواب:** قـدرمنو زمـا د وړی دورې او لـوی دورې تقریبـا څلوېښت کاله وشو، نوموړ نه خو د هغې ملګرو نه راځـې پاکسـتاني وو، زمونږ افغانان په هغې زمانه کـې د پاکسـتان پـه مدرسـو کـې د نیشـت برابـر و ، مګـر پـه وړه دوره کـې د جـلال الخـالق مولـوي صاحب ځوی او بل د هغوی د علاقې و چې بالفعل ملایـان و ، او د مولوي صاحب جلال الخالق ځوی في الحال پخپله مدرسه کې شـیخ الحـدیث دی او پـه لویـه دوره کـې مـې یـو ملګـری دبنـو اوسیدونکی او په دارالعلوم سرحـد کـې ؤ ، اوس فـی الحـال پـه همدی مدرسه کې شیخ الحدیث دی.

**۷ -پوښتنه:** دقدر وړ شیخ صاحب: تدریس مـو لـه کـوم ځایه او کتابه پیل کـړ او کـه داراتـه ووایـي چـې ددومـره کامیـاب تدریس راز مو په څه کې وو (مطالعه ، داستادانو دعاګاني کـه بـل څه ؟)

**جواب:** الحمدلله زما د تدریس دوه برخې وې، یوه د طـالبی په زمانه کې هغه داسې چې د هدایة النحوې او مـراح الارواح د زده کړې پـه وخـت کـې مـا د صرف میـر ، میـزان الصرف، نحـومیر ، نورالایضاح او زرادي تدریس کاوه او د کافیه د درجـې د زده کـړی سره مې د هدایة النحو ، مراح الارواح او صرف میر تدریس کـاوه ، او د شرح جـامي د درجـې د زده کـړی سره مـې، کافیـه، اصـول الشاشي، مراح او صرف میر تدریس کاوه.

دویمه برخه د فراغت نـه وروسـته مـې کافیـه، شرح جـامي، شرح تهـذیب، نورالانـوار، شرح وقایـه، نفحـة العـرب او جلالـین شریف د باړه مارکیټ اشاعت الاسلام مدرسه کې پـه کـال( ۱۳۵۷ هـ ش) کې تدریس کول.

د کامیاب تدریس راز د الله تعالی قضاء او قدر ، رحمـت او فضل، د مور پلار اخلاص او دعا، زما محبت او عشق د علـم سره، د استاذانو ادب احترام خدمت کـول او دعاګـانې، او ډیـره مطالعـه کول، د مثال په ډول ما په شرح جامي باسول، کابلی، عبـدالغفور ، مصدرالسرور مطالعه کول او یوه قلمـي نسـخه مـې پـه دارالعلـوم سراج الاسلام کاهي هنګو کې پیدا کړی وه چې په هغې کې یواځې د عصام د اعتراضونو او نکتو حل و ، او د طالبانو سره مـې خـاص اخلاص و چې دا ټول علم پـه یوځـل دوی تـه نقـل کـړم، زمـا نـه یادیږي چې د طالبی په دور کې بـه مـا د ملګـرو سره جنـګ، بـده خبره ،کبر او حسد کړی وي، الله تعالی دې ټولو څخه رضا شي.

**۸ -پوښتنه:** جناب شیخ صاحب وفـاق المـدارس دفنونـو ډېری کتابونه له نصابه ویستلي دي، قاضي ،حمدالله، صدرا، امـور عامه خو خیر اوس مطول هم طالبان نه پیژني وفاق المدارس لګیـا ده شرح جامی او مختصرالمعاني هـم لـه درسي نصـابه یابـاسي او یابې لنډ او بوچ کوي په دې باب ستاسي تاثر او لرلیـد څـه دی ایـا دغه ګامونه دطالبـانو لـه اسـتعدادونو سره مرسـته کـوي کـه زیـان وراړوي؟

**جواب:** هغه کتابونه چې خارج کـړي یـي دي پـه دوه قسـمه دي:

- اول قسم: د فلسفي کتابونه او د منطقو لوی کتابونه دي.
- دویم قسم: د صرف، نحو او علـم بلاغـت لـوی کتابونـه دي.

داول قسم په باره کې د وفاق المدارس د علماؤ شـوری چـې په هغې کې د علم التفسیر ، علم الحدیث، علم الفقه، تصوف او د علم سیاست داسې لوی ماهرین د علم د سـمندر پـه شـان علـماء موجود دي چې د اعتماد وړ خلک دي.

دویم زما د پنځوسو کلنو تجربه او د سترګو لیدلی حال چـې وو په افغانستان او پاکستان کې ددې فن ماهرین فقط څو کسـان ؤ، خو په همدې فن کې ماهرین و، نه په قـرآن ، حـدیث او فقـه کـې. البته ددې فن سطحي لولونکي او زده کونکي ډیر ؤ. نـو فائـده یـې څه شوه بې د وخت له ضیاع نه؟

دریم د نن زمانې سائنس چې پـه مشـاهدی او براهینـو ثابـت دی د سابقه فلسفې اکثره مسائل یې باطل کړي، او اکثره خبرې یې د قرآن کریم او د احادیثو د نصوصو سره مخالفې دي.

څلورم حکم ددې فن :

ويلخص ابن أبي العز شارح الطحاوية مذهب الفلاسفة في خمسة أصول عندهم فيما يلي:

أن الله سبحانه وتعالى موجود لا حقيقة له ولا ماهية ، ولا يعلم الجزئيات بأعيانها ولكنه يعلمها إجماليا ، وبالتالي أنكروا خلق أفعال عباده . كما ولا يؤمنون بكتبه حيث إن الله عندهم لا يتكلم ولا يكلم ، وأن القرآن فيض فاض من العقل الفعال على قلب بشر- زكي النفس طاهر ، تعالى الله عن وصفهم علوا كبيرا ، والملئكة عندهم ليست ذوات منفصلة تصعد وتنزل وتذهب ؛ إنما هي عندهم أمور ذهنية لا وجود لها في الأعيان . والفلاسفة أشد الناس إنكارا لليوم الآخر وأحداثه ، وما الجنة والنار عندهم إلا أمثال مضروبة لتفهيم العوام ولا حقيقة لها في الخارج.

صرح جهور الفقهاء بتحريم تعلم الفلسفة ، ومن كلامهم في ذلك:

قال ابن نجيم (حنفي) في "الأشباه والنظائر": " تعلم العلم يكون فرض عين , وهو بقدر ما يحتاج إليه لدينه . وفرض كفاية , وهو ما زاد عليه لنفع غيره . ومندوبا , وهو التبحر في الفقه وعلم القلب . وحراما , وهو علم الفلسفة والشعبذة والتنجيم والرمل وعلم الطبيعيين والسحر " انتهى من "الاشباه والنظائر مع شرحها: غمز عيون البصائر للحموي."

- دويم قسم : خارج شوي كتابونه لكه شافيه او د شرح جامي حاصل محصول او مطول او اصولو كې تلويح توضيح داسې مغلق كتابونه دي چې صرف اعتراضونه په متن يا په بل شارح يا د متن د انتهايي اختصار په وجه اغلاق او سختي وه د هغې په حل كې وخت ضائع كول دي نو دفن مسئله چې مقصودي ده هغه په كې وركه شي دا علوم آليه څخه دي نه د علومو مقصودي څخه لكه د علم عربيت ، د علم تفسير ، د علم حديث او د علم فقه لپاره نو بايد د علومو آليه مسائل زده كړل شي چې علومو مقصودي ته فائده وكړي، نه چې اصلي او مقصود وگرځول شي.

او واړه كتابونه د منطق لكه ايساغوجي، مير ، قال اقول ، شرح التهذيب او تيسير المنطق دد زده كړه ضروري ده، ځكه چې په دې كې له دليل او له شرطونو څخه بحث كيږي.

**۹ -پوښتنه-** هركال زرگونه علماى كرام له مدارسو فارغيږي خودتدريس ميدان ته دگوتو په شمير علماى كرام مخه كوي او دتدريس مسند ته ورگرزي تاسې دغه علمي انحطاط ته په كومه سترگه گورى او دنقص ځاى يې چيرته وينى؟

**جواب :** د افسوس او خفگان مقام دى او د انحطاط سببونه يې ډير كيدى شي:

اول: د آخرې زمانې نښه كيدى شي، لكه چې حديث شريف كې راځي:(عن عبدالله بن عمرو رضى الله عنهما قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: إن الله لايقبض العلم انتزاعا ينتزعه من العباد ولكن يقبض العلم بقبض العلماء حتى اذا لم يُبق عالما اتخذ الناسُ رُؤوسا جُهالا فسُئِلوا فأفتَوْا بغير علم فضَلّوا و أضلّوا ) البخاري ومسلم.

چې د لويو علماء په وفات كولو سره به كم علم نا اهل به د هغوى ځاى ونيسي اومشران به شي، خلك به له دوى د مسئلو پوښتنه كوي دوى به فتوى وركوي بغير د علم نو خپله به هم بې لارى وي او نور خلك به هم بې لارى كړي.

دويم: د محيط اثر ، لكه مال ډيريدل، د اوسنى زمانې طالبى او د سابقه زمانې طالبى د اسمان او زمكې فرق لري، او د مبايلونو شغل، سياسي نظريات، او فنونو سره بې غوري او پوره نه ويل، ا دوره حديث او نورو كتابونو تدريس كې د استاذانو افراط كول لكه په اولو شپږو مياشتو كې يو څو صفحې ويل او تفريط كول لكه په باقي دوه مياشتو كې بيا ټول كتاب پاى ته رسول، او بل صحيح نيت نه درلودل چې صحيح نيت اول ځان پوره پوهول، دويم په هغې عمل كول، دريم د هغې خلكو ته د رسولو په تدريس يا دعوت سره نيت، څلورم صرف د الله رضاء حاصلول، نه شهرت او نه مال حاصلول او نه رياء.

دریم: د استاذانو بې ادبي کول، خدمت نه کول، مینه نه کول او د هغوی دعاء نه اخستل.

**۱۰ -پوښتنه:** دخپلو تجربو او لوړو ژورو په رڼا کې داوس دور طالبانو ته مو نصائح څه دي چې څنګه له وخت څخه کماحقه استفاده وکړي ؟

**جواب:** طلباءکرامو او د دین شمعو ته زما فقیر دا خواست دی چې دد ین حفاظت په علم کیږي نو تاسو مبارکان د دین محافظان یاست. قرآن کریم کې الله تعالی فرمايي: ( انا نحن نزلنا الذکر واناله لحافظون) معنوی محافظین یې علماء او طلبه دي نو تاسو د الله د دین حفاظتي ګارډ یاست، د ګارډ وظیفه په دوام داره توګه اطاعت، امانت او د قوانینو پابندي کول وي، نو تاسو هم کامله توجه د علم زده کړې ، کامل عمل او د غفلت نه ځان ساتلو ته وي، او دا یقین ساتل په کار دي چې د امت لپاره به ښه داعي او ښه مدرس جوړیږم او دا باید خپله فریضه وګڼي.

همدارنګه د استاذانو احترام ،خدمت کول اوهم ورسره محبت کول، دعاء ترینه اخستل ، د کتابونو ښه مطالعه کول او درس ښه په توجه اوریدل. او په فارغ اوقاتو کې د سلفو سیرت او تاریخ لوستل دا د انسان په ژوند کې ډیره تبدیلي راولي.

**۱۱ -پوښتنه:** عزتمند شیخ صاحب ستاسي په اند علماء کرام دتالیف او ترجمي برخي ته بائید څومره وخت ورکړي خواری وکړي ،او ترشا مستند او معتمد تالیفات او تصانیف پریږدي ؟

**جواب:** د علماء کرامو سره اول دا ذهنیت ضرور دی چې دا علم له دوی سره امانت دی د الله عزوجل لخوا د پاره د امت او دا په نصوصو سره ثابت دی او ددې رسول ضرور دي پر دوی دا هم په نصوصو ثابت دي.

ددی د رسولو امت ته درې لارې دي: اول د تدریس، دویم دعوت، دریم د تصنیف لاره ده.

شرعي علم چې په دغه (۱۴۴۱هـ ق) کال کې مونږ ته رارسیدلی په دغو دریو لارو رارسیدلی دی، خو سلفو تدریس او دعوت مستقیم مخامخ مونږ ته نه دی کړی نو یواځنی لاره چې مونږ ته پرې دا دین رارسیدلی هغه د سلفو تصنیفونه دي، نو علماء کرام په تصنیف کولو کې څو شیان ضرور په نظر کې ونیسي، صرف د الله تعالی رضاء نه شهرت او ریاء، تصنیف فریضه وګڼل شي د دین د امانت اداء کولو، وسائل لکه ډیر کتب او شروح پیدا کول، ژوره مطالعه کول، موضوع تعین کول د هغې مستند دلائل د حوالې سره ، عدالت څخه کار اخستل، تنګ نظري نه کول حقایقو ته کتل، کومه موضوع چې سخته وي له جیدو او ماهرو علماؤ سره مشوره کول، د ترتیب او ربط خیال ساتل، چې څومره لیکل وشي صفحه دوه صفحې مثلا د هغې ضرور بیا د نظر نه ویستل چې د مفهوم په لحاظ یا د املاء په لحاظ خو به غلطي په کې نه وي راغلی، باید بار بار یې تصحیح وشي بیا بله تصحیح ضرور د بل چا لخوا وشي ځکه چې سړی خپلې غلطۍ ته اکثره نه متوجه کیږي، بیا د کتاب له بشپړولو څخه وروسته او له چاپ کولو څخه مخکې یو جید عالم او دفن ماهر ته ورانډې کړی شي په طریقه د نقد سره نه په طریقې د تائید بیا د هغه د تنقید کولو اختیار دی نو هغه ځای باید اصلاح شي یا د هغه اختیار دی چې تائیدوي، خلاصه دا د الله تعالی او د امت په نزد ډیر لوی مسئولیت دی.

**۱۲ -پوښتنه:** جناب شیخ صاحب که دخپلو چاپ او ناچاپ اثارو په اړه لوستونکو ته معلومات ورکړی خوښ به شو ؟

جواب : زما چاپ شوي کتابونه محض د الله فضل دی، زما مقصد صرف د الله تعالی رضاء ده، او دا ژور فکر راسره دی چې د

الله دين خلکو ته ورسيږي د خپل وس تـوان موافـق، ډيـره ژوره او ډيره وسيعه مطالعه مې کړې د الله تعالی په توفيـق ددی لپـاره چـې ډير مهم مسائل او احاديث چې د خلکو د نظر لرې پـاتې و خلکـو ته ورسيږي نو زما بنده تاليف شوي کتابونه دادي:

١ -جواهرالحسان من السنة والقرآن:

په دی کتاب کې د هغو ټولو آيتونو د قرآن کريم تفسير شـوی چې د اخلاقو سره تعلق لري.

٢ -اللؤلؤ المنثور :

لکه څنگه چې د نوم څخه معلوميږي دی کـې ډيـر مختلـف النوع عجيب او مهم مسائل ذکر دي.

٣ -الصفات العُلی لنبيه المصطفی صلی الله عليه وسلم:

دی کتاب د نبي کريم صلی الله عليه وسلم ډير مهـم او لـوړ صفات ذکر دي چې د معـاشری د جوړښـت محبـت او کرامـت او شفقت سره تعلق لري.

۴ -الحکمة والمواعظة الحسنة:

۵ -الحقوق والآداب :

دی کتاب کې د الله تعـالی د حقوقـو څخـه واخله دحشراتو طيورو حقوقو پورې د احاديثو پـه رڼا کې ذکر دی، ددی څخه معلوميږي چې اسـلام جامع دين دی چې د هر چا او هر شي حق په کـې خوندي دی.

٦ -العصبية في الشريعة:

٧ -فضل العلم والعلـماء في ضـوء القـرآن والسنة و اقوال السلف.

ان شاء الله د علماء کرامو او طالبـانو د ديـن محافظانو تنده په کې ماتيږي، والله اعلم.

**١٣ -پوښتنه:** دپای پوښتنه مو داده چې عصري علوم ، دديني علومـو پـه پراختيـا ، تشـهير کې څومره رول لري او ديوه ديني طالـب او دينـي عالم لپاره چې دعصري پوهي کمال هـم لـه ځـان سره ولري څومره پرځای خبره درته برېښي؟

**جواب:** دعصري علومو حقيقت دادی چې د ديني علومو پـه ترقی او پراختيا کې ډير تاثير لري لکه حساب رياضي، انگلېـسي، کمپيـوټر ، عـربي ژبـه او سـائنس او طـب او اداری سمبالښـت (منجمنټ) دی، زما په نظر بايد عـصري علـوم پـه نصـاب د دينـي مدارسو کې ځای پرځای شي، د ديني مدارسو فراغت او نصـاب د اتو کالو څخه لوړ شي دولسو کلونو ته، امارت اسلامي بايد بل چـا ته محتاج نه وي، او بله داده چې علـوم ، اداره، تجـارت او کارونـه اوس ټول کمپيوټري شوي دارنگه د دنيا ټول نظام کمپيـوټري شـوی دا عصـــري علــوم اوس د وخــت ضرورت دی، اســلحې تـولې کمپيوټري شوي دي نو ډيره توجه ورته په کار ده.

والله اعلم بالصواب ، ربنا لاتؤاخذنا ان نسينا او اخطأنا.

ډيره مننه

## له ځوان نسل سره ستر خيانت!

ليکنه حماد

د اسلامي ويښتابه او بيـدارۍ پـه نـوم دعـوتي جماعتونه جوړول، ځوانان پکې جذبول او بلاخره يې له داسې سياسي بهيرونو سره وصلول چې نـن عمـلاً د صليبي تاړاکگرو چوپړ وهي، له ځـوان نسـل سره سـتر خيانت دی.

داسـې خيـانتگر دعـوتي جماعتونـه د اسـلام او اسلامي ارزښتونو څخـه پـه اسـتفادې سره غـواړي د ځوان نسل له سپېڅلو احساساتو څخه غلطه اسـتفاده وکړي او په خپلو لومو کې يې ښکېل کړي، نو ځـوان نسـل تـه لازم بويـه چـې پـه شـهدو کـې د زهـرو سـوداگر وپېژني تر څو د دوی په دامونو کې ونه نښلي.



# سید آباد ونړوئ چې نیویارک په امن شي!

زمــوږ تــاریخ لکــه څنګــه چــې اســمانځکي اتــلان لــري همداسې د سرټیټو ګوډاګیانو او مرتتانو څو بیلګې هم لـري. د ګوډاګیانو یوه پیژندل شوې څیره شاشجاع دی، شاشجاع چې افغانستان ته د انګریزانو په راوستلو ملامت او د تاریخ مجرم پیژندل شوی، ګناه یې دا وه چې په ۱۸۳۹ م کـال کـې د انګریـزي لښـکر پـه بدرګـه پـر افغانسـتان راغـی او د کابـل تخت یې قبضه کړ .

شاشجاع به ګوډاګی و، د کفـارو ملګـری بـه و او بـل هـر الزام پرې لګولای شو، اما دومره بـې غیرتـه، بـې نسـبه او بـې اصالته نه و چې د لندن د انګریزي ماڼیو د خوندیتوب لپاره د خپلـو بـې چـاره هیوادوالـو ختهینـې کـوډلې لـه خـاورو سره خـاورې او د ودانـو کلیـو د قصـدي تخریـب قومنـده صـادره کړي.

دې وطن ببرک کارمل هم درلود، خو کله یې هم دا نـه و ویلي چې افغانستان وران کړئ تر څـو ماسـکو او لنـین ګـراد په امن شي. اما راشئ د نن زمـانې امریکـایي ګـوډاګي اشرف غني ته چې د خپلو صلیبي بادارانو د کفري عقدې د سړولو لپاره پر افغان اولس د قسما قسم مظالمو سرچپه میچنـې چلوي.

اریانا تیلویزیون او ګڼې نورې رسنۍ راپـور ورکـوي چـې د اشرف غنــي تــر مشرۍ لانــدې ګوډاګیــانو د میــدان وردګ ولایت په سید اباد ولسوالۍ کـې د عمـومي سرک لـه غـاړې سره د افغــان اولــس ۸۰ کورونــه نــړولي دي. د دې کورونــو خلک وایي چې له هیڅ وسلوالې ډلې سره تړاو نه لـري، عـام افغانان دي او د کورونو یوازینۍ ګنـاه یـې دا وه چـې عمـومي سرک ته نږدې ول. دوی وایي همـدا کورونـه یـې د ټـول ژونـد سرمایـه وه، د منـي پـه دې سـاړه موسـم کـې چـې پـه میـدان وردګ او نورو مرکزي سـیمو کـې هـوا ډیـره سـړه ده، د دومـره ډیرو خلکو بې کوري یوه بله بشري فاجعه ده. ځکه دا خلـک نه دومره وس لري چې ځان ته نور کورونه جوړي او نه یې هم څوک په غم او کیسه کې دي. ځکه د دوی کورونـه د کابـل د حکومت لخوا د طالبانو د پلوی په جرم په نړول شوي دي .

په سید اباد او نورو سیمو کې د بېچـاره افغانـانو کورونـه او ملکیتونه د هغـو ځـانګړو ځواکونـو لخـوا نـړول کیـږي چـې

شپني عمليات ترسره کوي. اشرف غني چې کله ددې قاتلو ځواکونو په قرارګاه کې د خطابې ميز ته پورته شي نو تر خبرې وړاندې او وروسته همدا ټکی تکراروي چې ( ستاسو قرباني او عمليات د دې لپاره دي چې نيويارک امن شي. دا ستاسو د عملياتو برکت دی چې په واشنګټن او لاس انجلس کې چاودنې نه کيږي)

که د تروريستانو تر عنوان لاندې د بې ګناه افغانانو قتل عام د نيو يارک د امن لپاره وي نو پوښتنه دا ده چې د سيد اباد ختينو کورونو څه ګناه کړې وه؟؟ دغه غريبانه جونګړې خو د ځمکې د کُرې په بل اړخ پرتې دي،له نيويارک څخه لسګونه زره کيلومتره لرې دي، نه پوهيږو د دغو جونګړو د نيويارک له ماڼيو سره څه مناسبت و چې دغسې د اشرفي قاتلانو لخوا په بمونو تخريب او لوټه لوټه شوې؟؟

خو دا يوازې د وردګو سيداباد نه دی چې ختينې کوډلې يې د اشرف غني په امر د نيويارک او لاس انجلس له ماڼيو ځاريږي. په پکتيا، لوګر، غزني، بغلان او ډيرو نورو ولاياتو کې کټ مټ همدا عمليه روانه ده. د اشرف غني قاتلان هره شپه په ولسي سيمو چاپې اچوي. د خلکو کورونه نړوي، د ځوانانو تر بارود رسۍ ورتړي او د داعش په شان يې سر له تنې بيلوي، سپين ږيري قتلوي، ښځې او ماشومان د خوب په بسترو کې وژني او . . . مګر د څه لپاره ؟؟؟ ځواب معلوم دی. . . د دې لپاره چې د ټامي بابا د خرمستيو وطن او د ده د نازولو اولادونو د هوسبازۍ ټاټوبی (نيويارک او لاس انجلس) په امن شي.

هوکې، همدا د اشرف غني د تفکر او ستراتيژۍ ټوله خلاصه ده. نوموړي چې ځان يې د نړۍ دوهم متفکر باله، دې ولس ته يې له بې کارۍ، قتلونو، غلا، لوټمارۍ، بدنامۍ او فحاشۍ وروسته آخرين ارمغان همدا و چې (سيدا باد ونړوئ تر څو نيويارک امن شي)

د افغانستان لپاره د اشرف غني د لرليد خلاصه همدا ده چې سيداباد ونړوئ، زرمت بمبار کړئ، شيرزاد په وينو ولمبوئ، لوګر په اور وسوځئ، شلګر او دهيک له خاورو سره برابر کړئ، تر څو نيويارک په امن شي او په لاس انجلس کې چاودنه ونه شي.

تاريخ به ډير سرټيټي او ګوډاګيان ليدلي وي خو په دې کچه د خپل اولس غدار او د ملت جفاکار يې ښايي په تصور کې هم نه وي راغلی .

## دږيرې لويه‌ول

د ږيرې پرېښودلو او لويه ولو په اړه پنځه نبوي امرونه راغلي دي او دا په مختلفو حديثونو کې راغلي دي. چې هغه حديثونه هم د صحيح البخاري او صحيح مسلم دي، د دې ټولو نبوي امرونو عمومي او ټوليز مطلب ږيره اوږدول، پرېښودل او لويه ول دي. دا امرونه په لاندې توګه امام النووي رحمه الله د مسلم په شرحه کې راخيستي دي:

1. أعفوا
2. وأرخوا
3. وأوفوا
4. وأرجوا
5. ووفّروا

شرح النووي على صحيح مسلم (١٥١/١). عمر بن عبد العزيز رحمه الله وايي: ږيره خرييل مُثله ده او موږ له مُثله کولو منعه شوي يو. مُثله د تعذيب په وخت د انسان پوزه، غوږونه او نور اندامونه پرې کولو ته وايي چې دا شرعاً حرام کار دی. ږيره خرييل هم يو ډول مثله ده.

د حديثو دا تشريح بې ږيرې خلکو ته د دعوت په توګه په ډېره مينه او درنښت وړاندې کوم، الله دې موږ ټولو ته هدايت وکړي، لطفاً تاسو هم په ورته اراده دا کرښې شير کړئ، نه چا ته د پيغور او طعنو په نيت...

# طالبان ولې جګړه کوي؟



لیکنه: أبو إحسان عامر

دا چې د افغانستان سمه او غر ځمکه او فضا دینی چارې او کلتور د غرب د یوه بې رحمه فرعوني ځواک له لوري اشغال او یرغمال شوي، په داسې وخت کې د الهي ارشاداتو او نبوي احادیثو له حکم سره سم ،همدارنګه د دنیا د هر قانون په رڼا او د هر یوه ویښ ضمیر په محکمه کې طالبان مجبور دي او دا یې مسلم حق جوړېږي چې د دې راغلو تقریبا درې درجنه اشغالګرو هیوادونو ( چې په سر کې یې د وخت جابره او کافره امریکا قرار لري) پر خلاف خپله روا او سپېڅلې جګړه په هره ممکنه لاره چې وي پر مخ یوسي.

د نړۍ د هر هیواد او قوم بلکې د ځمکې پر مخ د هر یوه ژوندي دا دستور دی چې له استقلال او له خپل کور نه دفاع د ځان حق او مسؤلیت ګڼي.

استقلال د ژوندانه یو هغه اهم رکن دی چې د ژوندیو ټولې خوښۍ او سکون له استقلال او ازادۍ نه سرچینه اخلي. همدا لامل دی چې افغانان د استقلال مینه په وینه اوبوي.

افغانان یو تاریخي مؤمن تېر او له پېړیو پېړیو ازاد قوم دی ، د ازادۍ په قدر دومره ښه پوهېږي چې خپلې ځوانۍ او هستۍ له لاسه ورکوي خو ازادۍ ته ناولي لاسونه نه پرېږدي.

دلته څه کم شل کاله وړاندې د دې هیواد د واقعي وارثو بچیو (طالبانو) له لوري د هیواد په ۹۵ فیصده خاوره باندې د یوه بې ساري امن څادر وېر شو، هیواد له هر رنګه بد بختیو او ناخوالو نه په امن وو.

خلکو ښه د ارام سا اخیسته، نه یې عزت او ناموس ته د چا لاس رسېد او نه یې د مال لوټل د چا د وس کار وو.

کافر چې د مؤمنانو تاریخي دښمن دی، د مؤمنانو ازادي او خوشحالي ورته هیڅ د منلو نه ده نو ځکه یې زرګونه میله لرې زموږ د ارام ژوندون پر خلاف حشر- تیار کړ او زموږ د پاکې خاورې پر لور له درنو بمونو، شوبلو او رنګارنګ مرګونې اصلحو سره را و کوچېدل.

له کله نه چې دې بې رحمه اشغال دلته لومړی ناولی قدم اېښی له هغه تر اوسه افغانان او ارم ژوند سره پر دوو لارې دي.

اوس که د هیواد د ترقی، امن، اولس واکی او بیارغونې په اړه موږ د امریکا باتې او عمل په خپله ژبه وغندو ، نړی به یې له دې کبله راسره ونه مني چې ګواکې موږ خو له امریکا سره په جنګ بوخت یو او د خصم خبره د اثبات میدان کې نه منل کیږي.

موږ د دوی دلته راوړې فتنې د دوی په خوله د دوی په مقابل کې د سپېڅلي غزا او د روا جګړې او دنړیوالو د قناعت لپاره دلیل ګرځوو.

اشغالګرو او ګوډاګیانو یې د لته د دې دلائلو له کبله خپل ناروا اشغال ته جواز ورکاوو:

۱ ـ اولس واکي

۲ - ترهګري ختمول

۳ - د نشیي توکو مخنوی

۴ - هیواد پر خپلو پښنو درول

د اشغالګرو د خپلو رسنیو له لارې که لومړی اولس واکي وارزول شي ښه جوتیږي چې دلته د اولسواکی دا حال دی:

چیرت چې د شاوخوا ۳۸ دیرش میلیونه هیوادوالو بر خلیکځه د پاسه یو میلیون خلک ټاکې کوم چې هغه هم اکثره یې پردي پال یا په نشو رودي او د کابل د اجیرې ادارې اړوند کسان دي شمېر یې هم شفاف نه دی دروغ او جعلي رایې پکې خوښینه ونډه لري.

هغه ترهګري چې اشغالګر یې تعریفوي او ګواکې دوی یې په ورکه پسې دي.د دې ترهګری غټ مرتکبین خو تر هر چا وړاندې دوی دي.

دوی چې په توره د تیاره د خلکو کورونو ته د مرګ له فیغام او رنګ رنګ حشتونو سره ننوزي. دوی دي چې قومي غونډې ، ودونه او جنازې بمباروي. ښه مثال یې تېره میاشت د هلمند د موسی کلا پېښه ده چې د واده مراسم یې بمبار کړل او څه د پاسه ۹۰ تنه بې ګناه افغانان ښځې او ماشومان ې په شهادت ورسول. دوی دي چې واړه بچي د مندو په مخ کې په لوی ظلم په مرمیو غلبیلوي.

د اشغالګرو له راتګ سره جوخت د دې پر ځای چې نشیي توکي ورک شي برعکس بازارونه یې ګرام شول آن چې د چرسو دودونه د اداري دفترونو ترچوکیو او د ارګي چارواکو تر ګاډیو بهر راووتل،دا وخت افغانستان کې د دوی په خبره تر یو میلیون زیات خلک په نشو روږدي شوي دي .

د هیواد حیثیت او اقتصاد تر دغه حده رسېدلی چې تېره پنج شنبه د ۱۳۹۸ کال د لړم د میاشتې پر ۱۶ نېټه د ګالوپ په نوم څېړنیزې ادارې چې مرکز یې په امریکا کې دی ویلي: افغانستان د نړی د ۱۴۲ هیوادونو په قطار کې له وینزویلا وروسته تر ټولو نا امنه هیواد دی .

څېړنه وایي چې په دغه هیواد کې یواځې ۲۲ سلنه ولسونه پر پولیسو باور لري او یواځې ۱۳ سلنه وګړي یې د شپې له خوا ځان امن احساسوي .

څېړنیزه اداره وایې چې شاوخوا، ۵۰ سلنه افغانانو د غلو له لوټلو شکایت ورته کړی او ۲۹ سلنه نورو یې ورته ویلي چې د بریدونو ښکار شوي دي.

په اخلاقي او اداري فساد کې خو یېپخوا لا لومړی مقام خپل کړی، آن چې جنسي روابطو خپله لمنه د ارګ ترلمنې وغزوله او پارلمان ته ورتګ د جنسي اړیکو په قیمت تر لاسه کیږي.
غله رسما د ارګ له زړه تشکیلیږي، څوک د هیواد زر ، څوک یې سرحدونه ،څوک د هیوادوالو د وینو او اوښکو څاڅکې پلوري او په نړیوالو مارکیټونو کې ورباندې دنګې مانۍ جوړوي .

د وړاندې یادونو پر بنسټ طالبان او افغانان شرعا او عرفا حق لري او دا وربانـدې فرض ده چې له دې ناروا اشغال او فاسدې ادارې سره تر هغه خپله مبارکه غزا وغزوي تر څو چې هیواد مو د اشغالګرو له ناوړو قدمونو پاک او د یوه واقعي افغان شموله اسلامي نظام کور به شي.

# زندگی و خدمات شهید

# الحاج ملا عبدالسلام سعادت -تقبله الله-

مرتب : حبیبی سمنگانی

شهید الحاج ملا عبدالسلام سعادت – تقبله الله - فرزند مرحوم عبدالرؤف، نواسه مرحوم حاجی محمد سرور و نوه مرحوم ملا قل محمد در سال ۱۳۴۷ هجری شمسی در قریه جراب ولسوالی گذرگاه نور (خوست و فرینگ) ولایت بغلان در دودمان مجاهد و شهید پرور چشم به گیتی فانی گشود. خانواده او در جهاد بر ضد شوروی ها و کمونیست ها نیز سهم بارز داشت و از هیچگونه قربانی دریغ نورزید. شهید عبدالخالق، برادر شهید سعادت صاحب – تقبلهما الله – دران دوره جهاد و مقاومت تحت قیادت الحاج مولوی محمد قل شریعتی در سال ۱۳۶۷ هجری شمسی به سرمایه جاودانی شهادت سرفراز شد.

**دوره تعلم:**

شهید ملا عبدالسلام سعادت درس های ابتدایی را در مسجد قریه آبایی خود نزد مرحوم ملا صوفی محمد و مرحوم ملا بابه آخند آغاز نمود. سپس در سال ۱۳۵۹ شمسی برای فراگیری علوم دینی به ولایت قندوز سفر کرد و در مدرسه کوبای بالا شامل شد. او دران جا نزد داملا صاحب نصرالله و شیخ صاحب محمد عظیم اندرابی زانوی تلمذ نهاد. سعادت صاحب در سال ۱۳۶۲ شمسی به ولسوالی فرینگ ولایت بغلان رفت و آن جا نزد مرحوم مولوی عبدالاحد به روند آموزشی خود دوام داد. سپس در سال ۱۳۶۳ شمسی به ولسوالی برکه ولایت مذکور سفر کرد و در مدرسه سای هزاره از مولوی صاحب عبدالودود اکتساب علم نمود.

شهید ملا عبدالسلام سعادت در سال ۱۳۶۶ شمسی برای تحصیلات بیشتر علوم قرآنی و نبوی به عزم کشور پاکستان کمر همت و رخت سفر بست. آن زمان چون جهاد و مقاومت افغان ها در برابر تهاجم شوروی ها و نظام کمونیستی در سراسر کشور به اوج رسیده بود و عبور و مرور از راه های عمومی برای مردم جهاد و مجاهد پرور کشور مساعد نبود، او همانند بسیاری از هموطنان خود چندین روز پیاده سفر نمود و از راه ولسوالی ورسج (تخار) به کران و منجان (بدخشان) و سپس از مسیر شاه سلیم به منطقه چترال، پاکستان داخل شد.

سعادت صاحب سلسله درسخوانی را در دیار هجرت در منطقه سوات، که آن زمان مرکز علمی طلبای شمال کشور بود، نزد شیخ صاحب قاری حبیب الله سمنگانی و شیخ صاحب عبدالخالق مزاری آغاز نمود و مدت چهار سال دران جا درس خواند. سپس به دارالعلوم سراج السلام کاهی، هنگو

رفـت و بـه فراگیـری علـوم دینـی دوام داد. شـهید سـعادت صاحب بعضی کتاب ها را نزد برادر بزرگ خـود مولـوی صـاحب عبدالغیاث قانع نیز خوانده بود.

## پیوستن به تحریک اسلامی طالبان:

هرگاه چند تن از مجاهدین مخلص جهاد ضد شوروی به سرکردگی (مرحوم امیرالمـؤمنین) مـلا محمـد عمـر مجاهـد بـه هدف پایان بخشیدن دوره هرج و مرج و شورش های خانمـان سـوز دهـه نـود مـیلادی، قیـام نمودنـد و در مـدت کوتـاهی قنـدهار را از پنجـه هـای خـون آشـام جنایتکـاران نجـات بخشیدند و زیر چتر لوای سـفید در کنتـرول خـود درآوردنـد. عـده یـی از طلبـای مـدارس دینـی از مدرسـه ضیاء المـدارس (مشـهور بـه مدرسـه پنجشـیری هـا در بـورد، پشـاور) بـه سرپرستی ملا عبدالسلام سعادت برای یکجا شدن با تحریـک اسلامی طالبان کمـر همـت بسـتند و از راه کویتـه، بلوچسـتان داخـل سـپین بولـدک، قنـدهار شـدند. سـعادت صـاحب از قندهار بـه هلمنـد رفـت و مبـارزه طـولانی و خسـتگی ناپـذیر خود را ازان جا آغاز نمود. مبارزه که ۲۵ سال یعنی تـا واپسـین رمـق زنـدگی او دوام کـرد و پـای اسـتقامت ایـن فرزنـد دلیـر اسـلام دریـن مـدت مدیـد لحظـه ای هـم نلغزیـد. او بـا عـزم آهنین در مسیر مقدس خود استوار ماند و راستی و وفاداری خود را ثابت نمود.

جا دارد که چند سطری از مقاله شهید سعادت صاحب را کـه سـال گذشـته بـه فرمـایش بنـده (حبیبـی سـمنگانی) بـه مناسبت سالروز وفـات مرحـوم امیرالمـؤمنین مـلا محمـد عمـر مجاهد به عنوان «امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد از نگاه من» نوشته بود، در مـورد یکجـا شـدن او بـا تحریـک اسـلامی طالبان نقل بکنم. شهید سعادت – تقبله الله - می نویسد:

»مـا ده هـا تـن طلبـای مدرسـه بـه شـکل گروهـی بـرای پیوستن به تحریـک اسـلامی طالبـان بـه فرقـه قشـله جدیـد، قنـدهار رفتـیم و فـردای آن روز بـه فرقـه گرشـک، هلمنـد تشکیل شدیم. در همان جا نخستین بار (امیر المـؤمنین) مـلا محمـد عمـر مجاهـد – رحمـه اللـه - را دیـدم. مرحـوم امیرالمؤمنین با شهید ملا محمد آخند، فرمانده عمومی نظـامی طالبـان بیشـتر مشـوره هـای شـان را در اوطـاق مـا انجـام مـی دادند، ما واقعا در همان روز های آغازین از برخـورد شایسـته مرحوم امیرالمؤمنین بسیار متاثر شدیم«

خدمات و مسئولیت ها در تحریک و امارت اسلامی:

شهید ملا عبدالسلام سعادت از خط های مقـدم نـبرد در هلمند تا فتح هرات و سپس فتح کابل به خدمات نظامی خود در کاروان نجات بخـش طالبـان صـمیمانه دوام داد. در ابتـدا، نظم و تشکیلات جداگانه ای برای مجاهدین هـر ولایـت وجـود نداشـت. امـا هرگـاه طالبـان بـه چهـار آسـیاب رسـیدند حـافظ صاحب سراج الدین از سوی طلبا و مجاهدین ولایت بغـلان بـه حیث مسئول دلگی و ملا عبدالسلام سعادت بـه حیـث معـاون او معرفی شدند. امـا پـس از مـدتی، مسئولیت دلگـی بنـا بـر شایسـتگی در امـور محـاربوی و جهـادی بـه سـعادت صـاحب سپرده شد.

مجاهدین خط چهار آسیاب و میـدان شـهر پـیش از فـتح کابل به فرمان رهبری طالبان به ویژه شهید ملا بورجـان آخنـد – تقبله الله - به دو دسته تقسیم شدند. دسته ای در چهـار آسیاب باقی مانـد و دسـته دیگـری بـه سرکردگـی شـهید مـلا بورجان آخند و مرحوم مـلا محمـد ربـانی آخنـد از راه ولسوالی ازره (لوگر) داخل ولسوالی حصارک و سـپس شـهر جـلال آباد شدند و پس از تصرف جلال آباد و لغمان به کابـل نیـز داخـل شدند (ملا بورجان آخند پیش از رسیدن بـه کابـل در منطقـه تنگی ابریشم به شهادت رسیده بود). شهید سعادت صاحب تـا منطقـه ازره شـامل آن کـاروان بـود. امـا پـس از فـتح ازره، شهید ملا بورجان آخند شـماری از دلگـی مشـرها را بـرای نگـه داری خط جنگ دوباره به چهـار آسـیاب روان نمـود. مجاهـدین که در چهار آسـیاب مانـده بودنـد بـه قیـادت مـلا عبـدالرزاق آخند و به شمول ملا عبدالسلام سعادت از طریق جنوب از راه تپه خیرآباد و ریشخور داخل کابل شدند. سـعادت صـاحب بـا رفقای خود داخل وزارت داخله شدند و نماز فجر را به امامـت شهید سعادت صاحب در داخل وزارت داخله ادا نمودند.

مولـوی سـمیع الحـق حقنـواز، مسـئول پیشـین جهـادی ولایت بغلان و رفیق ۲۵ ساله شهید سعادت صاحب می گویـد : مردم محلـی بـه وزارت داخلـه آمدنـد و بـه سـعادت صـاحب گفتند که در فرقه پنج پیـاده کـه در نزدیکـی موقعیـت دارد، بعضی ها دست به چـور و چپـاول زده انـد. مـلا عبدالسـلام بـا

رفقای خود به فرقه ۵ پیاده رفتند و همچنان ساختمان ریاست عمومی پاسپورت را که متصل فرقه پنج بود، در کنترول خود درآوردند.

ملا عبدالسلام سعادت پس از فتح کابل و تاسیس امارت اسلامی به حیث مسئول فرقه ۵ پیاده تعیین شد. او بیش از دو سال این وظیفه را به پیش برد. شهید سعادت صاحب درین مورد برای بنده گفته بود : «بنده تنها با بست نفر وارد کابل شده بودم، اما به فرمان مرحوم امیرالمؤمنین که در حقیقت اهمیت دادن به اقوام غیر پشتون بود، به حیث قومندان فرقه ۵ جهادی کابل مؤظف شدم.»

مولوی سمیع الحق حقنواز می گوید : هرگاه تفتیش شد که فرقه ۵ در تشکیلات سردار داود خان وجود نداشت و نیز ساختمان این فرقه خانه شخصی پیر سید احمد گیلانی بود، مرحوم امیر المؤمنین این فرقه را لغو نمود و سعادت صاحب را قومندان لوای ۱۱ مدافع هوایی مقرر نمود. سعادت صاحب تا تهاجم امریکایی ها یعنی کمتر از ۳ سال به این حیث خدمت نمود.

## آشنایی با مرحوم امیر المؤمنین:

زمانی که طالبان هنوز در سمت های جنوب و غرب کشور مشغول مبارزه بودند، مرحوم امیر المؤمنین به مشر-ملا صاحب و یا لوی ملا صاحب یاد می شد. مرحوم امیر المؤمنین از همان زمان با سعادت صاحب بسیار محبت داشت و هرگاه از قندهار به خط ها و محاذهای مجاهدین می رفت، اوطاق سعادت صاحب را برای بود و باش انتخاب می نمود. حتی ملا صاحب ثقیل شانه خود را نیز به سعادت صاحب تحفه داده بود.

## پس از تهاجم امریکایی ها و ناتو:

شهید سعادت صاحب در صحبت با بنده (مرتب سوانح) گفته بود : ما پس از سقوط کابل، در آن شب و روزهای که امریکا و ناتو به شدت بمباردمان می کردند، از طریق مخابره نصرت (که وابسته به خود مرحوم ملا صاحب بود) رابطه کردیم، برای ما هدایت داده شد که نزد مولوی جلال الدین حقانی صاحب در شرق کشور باشید.

مولوی محمد محسن هاشمی، مسئول جهادی ولایت تخار و رفیق صمیمی شهید سعادت صاحب، می گوید : هرگاه بزرگان امارت اسلامی پس از بمباردمان های پیهم امریکایی ها فیصله به تخلیه شهر کابل نمودند، چون موتر من خراب بود، نزد الحاج سعادت صاحب به لوای یازده مدافع هوایی رفتم، سعادت صاحب دران اوضاع سردرگمی و سرگردانی، بسیار مطمئن بود و مجاهدین را با متانت کامل، رهبری می کرد.

مولوی سمیع الحق حقنواز در مورد آن شب و روزهای دشوار چنین می گوید : «هرگاه ما از کابل برآمدیم، در خوست منتظر (مرحوم) مولوی جلال الدین حقانی بودیم. زیرا مشوره ما با حقانی صاحب چنین شده بود که در مراکز سابقه او مستقر می شویم و از همان جا به مبارزه و مقاومت جهادی خود دوام می دهیم. هرگاه حقانی صاحب آمد، بزرگان، والیان و مسئولان نظامی ولایات شمال به شمول سعادت صاحب با حقانی صاحب ملاقات و در مورد امور نظامی مشوره نمودند. اما در عین حال جای ملاقات و مشوره حقانی صاحب و محل استقرار سه صد تن رفقا در مرکز حقانی صاحب در مته چینه (که بنده نیز شامل آن ها بودم) از سوی دشمن کشف شد. همان بود که امریکایی ها حقانی صاحب و رفقای او را آماج میزایل کروز قرار دادند و مرکز ما را نیز بمبارد کردند. در نتیجه ۲۷ تن مجاهدین شمال کشور شهید شدند و حقانی صاحب نیز دران حمله زخمی شد.»

شهید قاری عبدالله، برادر سعادت صاحب و شهید مولوی سیف الرحمن، خواهر زاده سعادت صاحب و شهید ملا رستم و ملا محمد حسن (از اقارب سعادت صاحب) نیز شامل آن شهدا بودند. خانواده شهید سعادت صاحب از خانواده های جهادپروری است که در هر دو دوره جهاد جان های شیرین شان را نثار آزادی خواهی کشور نمودند.

## جهاد و مقاومت برضد امریکایی ها:

شهید سعادت صاحب در ۲۵ رمضان همان سال به فرمان مرحوم امیرالمؤمنین و به سرکردگی حقانی صاحب از

گردیز، پکتیا مبارزه و مقاومت خود را بر ضد صلیبی ها از سر گرفت.

مولوی سمیع الحق حقنواز می گوید: «شهیدملا عبد السلام در ابتدا برای چند مدتی به عربستان سعودی رفت. آن زمان بنده مدت چهار سال و چند ماه مسئول نظامی ولایت بغلان بودم. اما سعادت صاحب دلاوری خود را ثابت کرد و دو بار در دوره مسئولیت بنده برای سازماندهی امور جهادی به بغلان رفت. آن زمانی بود که نیروهای اشغالگر و مزدور با تمام اطمینان خانه به خانه می گشتند و تا هنوز همانند او کدام چهره مشهور طالبان به شمال کشور نرفته بود.»

پس ازان شهید سعادت صاحب مدت یکسال به حیث مسئول جهادی ولایت بغلان برای داغ ساختن سنگرهای جهاد در ولایت مذکور ایفای وظیفه نمود. سپس یکبار در سال ۲۰۰۹ میلادی و بار دوم در سال ۲۰۱۳ میلادی مدت یک یک سال به حیث مسئول جهادی ولایت سمنگان خدمت نمود. به ویژه تشکیل نظامی که شهید سعادت صاحب در دوره دوم مسئولیت خود در سطح ولسوالی های سمنگان تعیین و روی کار نمود، توانست وضعیت جهادی این ولایت را کاملا به نفع مجاهدین تغییر دهد و امروز از برکت مساعی آن تشکیل، تقریبا تمام ولسوالی دره صوف و بیشتر ساحات ولسوالی حضرت سلطان در سیطره مجاهدین قرار دارد.

شهید سعادت صاحب چند مدت عضو کمیسیون مرکزی نظامی بود و پس ازان مدت چهار سال در حلقه مشرقی کمیسیون نظامی عضو بود و چهار سال پیهم در راس هیئت کمیسیون نظامی به ولایت های کنر، نورستان، جلال آباد و پکتیا سفر نمود و در مبارزه بر ضد فتنه داعشی در شرق کشور نقش عمده ای ایفا نمود.

سعادت صاحب در سال ۲۰۱۸ میلادی از سوی مقام امارت اسلامی به حیث مسئول فوائد عامه در حوزه شرقی کشور تعیین شد. او امسال برای پیشبرد وظیفه خود دو بار به ولایت های جلال آباد، خوست و پکتیا سفر نمود. سعادت صاحب در حالی که شب عید قربان به خانه خود برگشته بود، پس از سپری نمودن روزهای عید دوباره به پکتیا سفر نمود و در جریان این سفر به شهادت رسید.

سعادت صاحب شخص دلیر و غیور بود. او چهار بار از کام مرگ نجات یافت. بار اول در زمان حاکمیت امارت اسلامی موترش در بامیان با ماین تصادم کرد، چند تن رفقای او شهید و زخمی شدند، اما خود او نجات یافت. بار دوم در بمبارد مته چینه ۲۷ نفر مجاهدین شهید شدند، اما او محفوظ ماند. بار سوم در چاپه دندغوری، بغلان خداوند حفاظت نمود و بار اخیر موتر او درین اواخر در شرق کشور با ماینی که از سوی خوارج جا بجا شده بود تصادم کرد، و لکن اجل هنوز نرسیده بود. اما بالاخره این بزرگ مرد راه عزیمت به آرمان بزرگ زندگی خود مشرف شد و سعادت واقعا به سعادت نائل گردید. نخسبه کذالک ولله حسیبه.

## شخصیت:

الحاج مولوی مخدوم عبدالسلام سعادت، وزیر پیشین کار و امور اجتماعی امارت اسلامی و از رفقای دیرین شهید سعادت صاحب، تاثرات خود را در مورد شهید ملا عبدالسلام چنین ابراز می دارد : شهیدالحاج ملا عبدالسلام سعادت سنگردار برازنده جهاد بود. او هر دو دوره مبارزه، مبارزه علیه شر و فساد و مبارزه علیه امریکایی ها را با استقامت تام سپری نمود. بنده چون او را از نزدیک می شناختم، او شخص ملنگ سار، مخلص و پاک طینت بود و در امور بیت المال بسیار امانت دار بود. سعادت صاحب را از دوره تعلم تا هنگام شهادت به مسیر مقدس و هدف والای خود مخلص یافتم. ما با نبود او خلای بزرگی را در صف امارت اسلامی می بینیم. پروردگار شهادت او را به بارگاه خود قبول نماید .

مولوی سمیع الحق حقنواز می گوید : سعادت صاحب شخصیت بسیار مخلص بود، از امرا اطاعت می نمود، پایبند نماز با جماعت بود و اگر برای رفتن به مسجد زمینه مساعد نمی شد نماز را با همراه و همسفر خود با جماعت ادا می نمود. بر اذکار صبح و مسا، تهجد و اشراق و تلاوت قرآن مداومت داشت. مرحوم امیرالمؤمنین در زمان حاکمت امارت اسلامی برای خانواده او اعاشه مقرر کرده بود، اما سعادت صاحب بخشی از آن را هم به مجاهدین می داد و همچنان گاهی که به او پول فوق العاده داده می شد آن را هم میان مجاهدین توزیع می کرد. بنده بر این ویژگی او شاهد

هستم، زیرا بیش تر اوقات پول را به دست بنده توزیع می نمود.

الحاج مولوی شمس الدین پهلوان، والی ولایت میدان وردک و پکتیا در زمان حاکمیت امارت اسلامی و مسئول کنونی کمیسیون جلوگیری از تلفات ملکی و سمع شکایات در حوزه شرقی کشور، از شهامت و دلاوری شهید سعادت صاحب چنین یاد می کند : آنگاه که بنده در تحریک اسلامی طالبان (پیش از فتح کابل و تاسیس امارت اسلامی) ولسوال چهار آسیاب بودم، یکی از شب ها در منطقه سنگ نوشته به سنگر رفتم، ناگهان از طرف دشمن تعرض صورت گرفت، بنده در پهلوی سنگی قرار گرفتم و با راکت آر پی جی که در دست داشتم پنج فیر به سوی دشمن انداخت کردم، آن شبی بسیار تاریک بود، در فاصله تقریبا ده دوازده میتری من شخصی دیگری در عین زمان با راکت آر پی جی خود هفت فیر نمود. بنده احساس کمتری کردم و صبح فردا در جستجوی آن شخص بودم. هرگاه چشمم به سعادت صاحب خورد، او با خنده زیبا و بلند دست به سینه خود زد و گفت آنکسی که راکتش پیش از راکت تو داغ می شد من بودم. از همان جا رفاقت، برادری و همسنگری ما آغاز شد.

مولوی دادخدا خادم، عضو حلقه شمالی کمیسیون نظامی نیز حکایت می کند که در زمان حاکمیت امارت اسلامی یکبار در دره کیان ولایت بغلان تعرض کردیم و بسیار پیش رفتیم، اما سپس محاصره شدیم، دران اثنا شهید ملا عبدالسلام سعادت با دلاوری و مهارت نظامی خود مجاهدین را از محاصره نجات داد.

مولوی سمیع الحق حقنواز توکل و للهیت شهید سعادت را چنین توصیف می کند : هرگاه اشغالگران بر حریم افغانستان تجاوز کردند، چهل روز از آغاز تهاجم گذشته بود و در اخیر خط شمالی هم شکست، خانه سعادت صاحب از همه پس از منطقه وزیر اکبر خان بیرون شد. سعادت صاحب به لوای ۱۱ آمد و برایم گفت وضعیت خوب نیست، هشیار باش. من به پول محمود خان آمدم، می بینم که در راه لوگر بسیار ازدحام است و طالبان از کابل بیرون می شدند. من پس به لوا آمدم و برای برآمدن از کابل آمادگی گرفتم.



برای سعادت صاحب گفتم : چقدر پول داری ؟ گفت : ۶۰ لک افغانی. سعادت صاحب پرسید، تو چقدر پول داری ؟ گفتم ۸۰ لک. من گفتم : نظام هم از بین رفت، پس ازین اعاشه و اکمال مجاهدین از کدام راه می شود ؟ سعادت صاحب جواب داد : آن ذاتی که برای ما و مجاهدین در کابل رزق می داد، در جای دیگری هم رزق می دهد، به یاد داشته باش که خداوند مجاهدین را هرگز بی روزی نمی گذارد. همان بود که یک عالم بزرگ ولایت ما که قوم برایش پول جمع کرده بود آمد و ۴۰ هزار کلدار را به سعادت صاحب داد. سعادت صاحب ده هزار آن را پس به آن مولوی صاحب داد و گفت تو هم مسافر و مجاهد هستی .

سپس روزهای که در انتظار حقانی صاحب در خوست بودیم، ماه رمضان رسید. روزه اول را با شکم گرسنه گرفتیم. سعادت صاحب برای من گفت که مولوی صاحب در موتر شخصی به بازار برو، برای افطاری و سحری چیزی آماده کن. گفتم : سعادت صاحب اینجا تقریبا سه صد نفر هستیم، تنها برای رفقای خود و یا تمام رفقا ؟ سعادت صاحب گفت : امشب افطاری و سحری تمام مجاهدین را آماده کن، از فردا هر کسی برای رفقای خود انتظام می کند. وقت نماز عصر بود که عالم و تاجر دیگری آمد و هشتاد هزار کلدار را به رفقا داد.

شهید سعادت صاحب از تعصبات قومی، لسانی و سمتی پاک بود، به کرامت انسانی هر شخص ارج می گذاشت و به ویژه امرا، علما و محاسن سفیدان را بسیار احترام می نمود. از همین بود که سائر اقوام بغلان در زمان حاکمیت امارت اسلامی گرد او جمع بودند و نسبت به تاجک ها، برادران پشتون، ازبک و گجر بیش تر در پهلوی او ایستاده بودند.

شهید سعادت صاحب دارای عزم آهنین بود و در برابر باطل از مداهنت کار نمی گرفت. او پس از اشغال کشور، مدتی با فامیل خود در میرانشاه، وزیرستان در شرایط بسیار دشوار زندگی می نمود، آن زمان برهان الدین ربانی، رهبر ائتلاف شمال دو نفر مهم خود را نزد سعادت صاحب روان کرد و پیشنهاد کرد که اگر نزد ما بیایی، هر گونه منصب و دالر برایت مهیا می کنیم، اما سعادت صاحب در جواب گفت ؛ قبلا با شما به نام شر و فساد می جنگیدیم، اما اکنون جنگ ما در برابر شما جنگ بر کفر و اعانت علی الکفر است. جنگ کنونی بر ما فرض است.

الحاج مولوی عبدالغیاث قانع، برادر بزرگ شهید سعادت صاحب و وزیر پیشین کار و امور اجتماعی امارت اسلامی در مورد سیرت و اخلاق سعادت صاحب چنین می گوید : زمانی که در دوران حاکمیت امارت اسلامی تصمیم برای عروسی سعادت صاحب گرفتیم، من چیزی پول از مقامات امارت گرفتم، اما او همان پول را هم به مجاهدین توزیع نمود. ما پنبه های سوخته و کهنه را که در یک کنار فرقه افتیده بود گرفتیم، صاف کردیم و ازان توشک و بالشت ساختیم، اسباب بسیار اندکی برای خانه اش گرفته بودیم و حتی فرش ارزان بهای که در اوطاق های خانه اش فرش شده بود، آن در زمان قومندانی فرقه هم در خانه اش بود، در زمانی قومندانی لوا هم در خانه اش بود و حتی هنوز هم در خانه اش فرش است. من اگر او را هر قدر حرف زشت و تند می گفتم جواب نمی گفت، او از من چنان اطاعت می کرد که هیچ فرزندی از پدر خود نمی کند. شب کوشش می کرد زودتر خواب شود و برای نماز صبح وقت تر بیدار شود، حتی اگر شب یک ساعت هم می خوابید، حتما برای نماز صبح بیدار می شد. وقتیکه از نماز فارغ می شد، کفش مرا به دست خود می گرفت و منتظر می بود .

## شهادت:

چنانکه پیشتر ذکر شده بود که سعادت صاحب در آخرین سفر زندگی اش به منظور پیشبرد وظیفه جهادی خود به پکتیا رفته بود، شهید سعادت صاحب در مدت کوتاه مسئولیت خود (به حیث مسئول فوائد عامه) مسیرهای دشوار و کوهستانی عبور و مرور مجاهدین را ترمیم نمود و گشایش داد. نخست راه پیاده مجاهدین از منطقه کندو، سپینه شگه تا تانکی آب گلاب الدین را فراخ نمود. سپس راه منطقه سور خاورین تا تانکی آب گلاب الدین را ساخت. نیز از ولسوالی زرمت تا اودکی بر راه موتر کار نمود، تا قطعات مجاهدین برای جنگ با خوارج ازین راه بگذرند. همان بود که در دو شب و روز ۹۵۰ تن مجاهدین ازان مسیر گذشتند و سرانجام خوارج با شکست و ذلت رو برو شدند. سپس راه دیگری را در ولسوالی زازی اریوب تکمیل نمود، تا برای مریضان سهولت بیاید و توسط موتر به آسانی انتقال داده شوند. سعادت صاحب بالاخره در همین جا از سوی دشمن کشف شد و چاشت روز دوشنبه ۹ محرم الحرام ۱۴۴۱ هجری قمری مصادف با ۱۸ سنبله ۱۳۹۸ خورشیدی در حمله هوایی امریکایی ها به سن ۵۱ سالگی جام شهادت را نوش جان نمود.

جنازه شهید سعادت دو روز پس در ولسوالی گذرگاه نور ولایت بغلان در ادیره پدری اش در محضر- صدها تن خویشاوندان، مجاهدین و مردم منطقه به خاک سپرده شد.

سعادت صاحب چند روز پیش از شهادت، هرگاه خبر شهادت مسئول جهادی پنجشیر مولوی عبدالحی قانت – تقبله الله – را شنید، او در حالیکه در سفر جهادی بود برای خود دعای شهادت نمود. خداوند متعال دعای او را اجابت نمود و از دارالفناء به دارالبقاء طلب نمود.

## بازماندگان:

از شهید الحاج ملا عبدالسلام سعادت بر علاوه از صدها تن همسنگران، چهار برادر، شش پسر و دو دختر نیز به دنیا ماند. این هم بیان گر للهیت و تقوای شهید سعادت صاحب است که دو پسر او حفظ قرآن مجید را تکمیل کرده اند، یک پسرش مشغول حفظ قرآن است و پسر بزرگش که پنج ماه در قید اداره کابل قرار داشت و دو روز پس از شهادت پدرش رهایی یافت امسال درجه سادسه علوم دینی را می خواند. خداوند متعال حامی و مددگار بازماندگان او باد .

روحش شاد و یادش جاودان باد.

# ګلځونه



## زخمي سینه

غزل: ثناءالله معصوم

تـــا زخمـــي کړلـــې ســـینې د توتکیـــو
تـــا اخیســـتی ژونـــد ټپوســـه دمرغیـــو

تـــــا ازار وړی خزانـــــــه د دې کـــــلي
د ګلونـــــو، د ګــــــودر او د منګیــــــو

پـورورې یـې خـون خـواره پـور بـه ورکـړې
پـه دې چـم کـې هـا د ګـل غونـدې سـړیو

بیـا چاپـه وه پـه دې چـم کـې پـه مظلومـو
راتـــه غـــږ تـــرې ټولـــه شـــپه دســـلګکیو

پـرې ټپـي شـم پـرې ټپـي شـمه طالبـه!.
چـــې دې غـــږ راشي لـــه ټپـــه د زګرویـــو

مینـــــه ناکـــــه او ښایســــته طالبــــه راشــــه
چـــې ســـاتلې مـــې ګیـــډۍ د ســـپیلنیو

د معصـوم دنیـا خـو تـه یـې کـه تـه نـه وې
بیـا مـې مـه غـواړه د ژونـد پـه رنګینیـو

## سکروټې

/ الیاس فاتح

زخـــم زخـــم دې ښکـــلا شـوله اریـــوبه
څـــړیکه څـــړیکه هـره خـــوا شـوله اریـــوبه
رنګینـــــۍ د شنـــو درو لمبـــه لمبـــه شـــوې
د بـــاروت بـــاروت فضـــا شـــوله اریـــوبه
د وطـــن د مـــور لمـــن پـــه وینـــو سره شـــوه
هـر کالــه کـې ویـر غوغـا شـوله اریـــوبه
د کتـــار کتـــار شهیـــدو جنـــازو تـــه
پـــه سلګیـــو شپـــه سبـــا شـــوله اریوبـــه
د بچیانو،میـنـــدو غوښـــې وینـــې بـــاد شـــوې
کـــه شفـــق شفـــق دنیـــا شـــوله اریـــوبه
پـــه دې تـــوره تاریکـــۍ د استبـــداد کـــې
مـــړه د هیلـــې دې ځـــلا شـــوله اریـــوبه
دغـــه وینـــې بـــه د امـــن سرې غوټـــۍ شي
رب تـــه هیلـــه پـــه دعـــا شـــوله اریـــوبه
پـــه ژړا بـــه د زیبښـــاک نـــړۍ نړېـــږي
پـــه خنـــدا مـــو تمـــنا شـــوله اریـــوبه
د فـــاتح د رګـــو وینـــې شـــوې سکـــروټې
د ســـتا غـــچ د خـــدای رضـــا شـــوله اریـــوبه

یادونه: د اریوب ځاځیو ۲۰ ولسي شهیدانو په یاد، چې په یوه اوونۍ کې د خارجي یرغلګرو پرلپسې درو هوایي بریدونو کې په شهادت ورسېدل.

# پیمان ازادی

مـــن کیســـتم شـــناور بـــازو شکســـته‌ای
در ره‌گـــذار ســـیل حـــوادث نشســـته‌ای
غیـــر از خـــروش مـــدهش طوفـــان ســـهمگین
نشـــنیده مـــژده‌ای، ز لـــب پـــی‌خجســـته‌ای

دلـــداده‌ای، فریفتـــه‌ای، در هـــوای دوســـت
پیونـــد مهـــر از همـــه عـــالم گسســـته‌ای
آزاده‌ای، ز بـــار تعلـــق بســـان سرو
مجنـــون طـــراز سلســـله برپـــای بســـته‌ای

آزرده‌ای، ولـــی نـــه بـــه آزار مـــایلی
دل خســـته‌ای، ولیـــک دلـــی را نخســـته‌ای
مســـتغنی از سیاســـت حکـــام بحـــر و بـــر
دریـــانورد پیـــر ز جـــان دســـت شســـته‌ای

در احتضـــار، عمـــر بـــه آخـــر رســـانده‌ای
طرفـــی ز جـــان‌ســـپاری خـــود بـــر نبســـته‌ای
از اهـــل ایـــن زمانـــه، ســـزاوار دوســـتی
کمـــتر سراغ دیـــده و بســـیار جســـته‌ای

از بخـــت در شـــکایت و از دهـــر تنـــگ‌دل
از آشـــنا ملـــول و ز بیگانـــه خســـته‌ای
محـروم زیسـت هـر کـه چـو «پیمان» در ایـن وطـن
یـــا ســـیم و زر نداشـــت یـــا دار و دســـته‌ای

**نمونه دیگری از کلام پیمان:**

خوشـــا دلـــی کـــه تپـــد در هـــوای آزادی
خوشـــا سری کـــه رود در بهـــای آزادی
خوشـا بـه قطـرهٔ خـونی کـه مـی‌چکـد بـه‌زمـین
بـــرای دیـــن خـــدا و بـــرای آزادی

خوشـا بـه آن‌کـه شـود چـون حسـین و یـارانش
شـــهید معرکـــهٔ کـــربلای آزادی
خوشـا بـه آبلـه پـایی کـه در سـتیغ شـود
بلنـد بـه‌دســتش لـواى آزادی

خوشـا بـه تـازه عروسـی کـه بسـته‌اسـت آذیـن
بـه‌کـف ز سرخـی رنـگ حنـای آزادی
خوشـا بـه قافیـه سـنجان گلشـن توحیـد
کـه ناورنـد بـه لـب جـز نـوای آزادی

غبـار رهگـذری را ز خـاک میهن خـود
بـه سـلطنت نفروشـد گـدای آزادی
بـه پادشـاهی عـالم فـرو نیـارد سر
کسـی‌کـه زنـده بـود در فضـای آزادی

بنـای سـد خلـل ناپـذیر اسـکندر
بـه محکمـی نبـود چـون بنـای آزادی
رهـی کـه فاصـلهٔ آن زقـاف تـا قـاف اسـت
تـوان نمـود طـی امـا بـه بـه‌پـای آزادی

ز خطـه‌ای کـه اسـیر اسـت اعتبـار مجـوی
کـه خـاک زر شـود از کیمیـای آزادی
نـدای حـق نشـود در جهـان بلنـد هرگـز
اگـر بلنـد نباشـد نـدای آزادی

نمـی‌رسـند بـه سـاحل سـفینه‌هـای نجـات
اگـر مـدد نکنـد ناخـدای آزادی
خوشـا دمـی‌کـه در آینـد بـاز در پـرواز
کبـوتران حـرم در فضـای آزادی

قفـس شکسـته و زنجیرهـا گسسـته شـوند
بـه یمـن همـت فرامـان‌روای آزادی
دگـر بـه هـیچ دل اندیشـه‌ای نیابـد راه
ز هـر چـه هسـت بـه عـالم، سـوای آزادی

دگـر بـه خـون ضـعیفی زمـین نگـردد سرخ
بـه جـرم آنکـه چـرا گفـت، (هـای آزادی)
دگـر نـوای طـرب سر کننـد چـون پـیمان
هـزار شـاعر دسـتان سرای آزادی







# دغني هوايي دهلېزونه!

ليکوال: ابواسامه (نيازی)

په اساسي توګه ديوواقعي سياسي نظام اودولت دندې اومکلفيتونه خوراډېراوددېراهميت وړدي خوپه دې اساسي دندوکې يې ترټولوستراوڅرګندمسؤليتونه درې دي (۱) په هيوادکې په کلي اوسرتاسري توګه ديوپراخ اوډاډمن امنيت ايجادچې هرڅوک په کې دځان، مال او حيثيت دخونديتوب احساس وکړي (۲) په خپل قلمرو (خاوره) کې ديوشفاف (روڼ) نظام رامنځته کېدل چې دملت ټول اقشاراولوري په کې دتبعيض پرته ځان دخيل اوشامل وګڼي (۳) دهيواددوګړولپاره دکاراوکارموندنې موزون شرايط برابرول دي خوپه افغانستان کې داوسنۍ تپل شوې ادارې په راتګ اوايجادسره نه ډاډمن اوسرتاسري امنيت تآمين شو نه يوشفاف (روڼ) نظام چې په حساب ورکونې اوحساب اخستنې ولاړوي رامنځته شو اونه دهيوادوګړولپاره لږترلږه په نسبي ډول دکارشرايط برابرشول له شک پرته دافغانستان غيوراومجاهدولس له همغه پيله دامريکااوناټودنظامي يرغل ترسيوري، اودافغانانوترعنوان لاندې هغه پردۍ پالې ډلې ټپلې لکه دقبرص ډله دروم ډله، دپېښورډله اوشمالي ټلواله چې تش په نوم نړۍ والې ټولنې دبن په کانفرانس کې سره راټول کړل په پراخه کچه وغندل اويادې ډلې يې دپاکې خاورې دخارجي اشغال مرستيالان اوسترعاملين وبلل اوددوی اوخارجي يرغلګرواوترورستانوپه وړاندې يې سپېڅلي مقاومت اورواجهادته په ستروقربانيوترجح ورکړه خوااوشانولس کاله کيږي چې دوی دټولوملي اونړيوالوقوانينوخلاف دملت په اوږوباردي اوملت يې له اداري فساد، اخلاقي فساد، غصب، ترور، ظلم، چپاولګري اوهراړخيزې بې عدالتۍ اونوروبې بندوباريوترپوزې راغلي صليبي تالۍ څټې په مطبوعاتي بيانيواوڅرګندونوکې خپل ځانونه ازاداوتپل شوې اداره مشروع دولت ګڼي خوپه حقيقت کې نه دوی ازاداوخپلواک دي اونه يې اداره ولسي مشروعيت لري اونه هم حقوقي رواوالی يواځې يوسهامي شرکت دی چې دپورتنيوډلوټپلوسهم دچور، غصب، اوبې بندوباريوونډه دزوراوجنګي افرادوپه نظرکې نيولوسره اخستل کيږي تپل شوې ادارې ته ديومشروع دولت خطاب په حقيقت کې ديوريښتني مشروع دولت له سپکاوي پرته بل څه نشي کېدای دهمدې تش په نوم ددولت حاکمان دلاسته راوړنودعوې کوي لومړی خودااوسنی تپل شوی دولتي جوړښت په هيڅ قوانينوکې مشروعيت نه لري کله چې ديونظام رواوالی ترپوښتنې لاندې وي نوبيايې لاسته راوړنې کوم قانون پوه اوحقوق پوه رواومشروع ګڼلی شي داموږداسې تعبيرولای

شو چې یوځوک دیوې لویې ګناه په ارتکاب اوسرته رسولوکې دثواب تخیل اوفکر کوي په داسې حال کې چې ددوی لاسته راوړنې په حقیقت کې دملت په ارزښتونواومعنویاتو دیوستراوډېرزیان اړونکي ګزارپرته بل څه نه دي غني چې افغان الاصله امریکایي دی اودصلیب ګټوته په ژمنتیا شهرت لري اودخارجي اشغال په دوام کې یې نقش غښتلی اوبارزدی تل په عاموم‌محضرونوکې چغې وهي اووایي ماهیوادله اقتصادي بحران څخه وژغوره اوپه اقتصادي څلورلارې مې بدل کړ خوکه له واقعتونوسترګې پټې نشي همدې غني دنړیوال بانک دریم لاس منشي چې نه دادارې دسم مدیریت اهلیت لري اونه هم دتعقل اوتعمل منطق اوحوصله لري کالونه دمالیې وزیر و قراین اولاسوندونه په ډاګه کوي چې ترټولوستره مالي بې بندوباري اوچورپه ګمرکاتوکې ترسره شووی اوهیڅوک به ثابته نکړي چې نوموړي دې کوم لوړرتبه اوټیټ رتبه مامورپه دې نوم زندان ته لیږلی وي چې فلاني په فلاني ګمرک کې غبن اومالي خیانت کړی غني نه یواځې دمالیې دوزیرپه حیث دمالي فساداړوندافرادنه دي مجازات کړي بلکې دبشپړومدارکواوشواهدوپربنسټ دی دهمدې مالي مافیا دسستیماتیکواوتدریجي غلوسترسالاراورهبردی تاسې ته په دقیق ډول یاددي چې دده دوزارت په موده کې په ملیاردونو ډالرهیوادته راغلل خویواځې دهمدې جناب اودده اړوندسستماتیکواومسلکي غلوپه جیبونواوبانکي اکاونټونوکې له محاسبې پرته ولوېدل څرنګه چې دی تل هڅه کوي دملت عام زهنیت په خپله ګټه وڅرخوي اودخپلونوروبې شمېره جرایموترڅنګ دمالي فسادپه برخه کې ځانته برائت ورکړي دهوایي دهلیزونوشعارزمزمه کوي غني هوایي دهلېزونه په داسې وخت اوحالت کې دلاسته راوړنې په توګه یادوي چې دملت اکثریت دبېکارۍ اوفقرله لاسه دمرګ اوژوندترمنځ قرارلري تاسې طبعاً خبریاست چې دغني دبې بندوباره غیرې قانوني حاکمیت په ترځ کې ملي سوداګرداړتیاوړاسانتیاوودنشتون له امله په تېښته دي اوخپلې پانګې له افغانستان څخه دباندې باسي اوورځ تربلې دژونداولیه موادونرخونه په چټکۍ په لوړېدودي اودډېرې حیرانتیااوخنداوړخبره خوداده چې دهوایي دهلیزونوڅرک ترننه چاونه لیدیواځې هوایي دهلیزونه په هواکې هوایي خبرې ثابتې شوې بې فکره مفکرنه یواځې خلکوته دکارموندنې هڅه ونکړه بلکې هغه اشخاص چې ددوی دشخصي سلیقوسره برابرنه وو په بېلابېلوبهانوله کارونواودندولرې کړل خو یوشی چې خوراوضاحت لري هغه دا چې ملت داسپین سترګي غله دقیق او په سمه توګه پېژني اولرې نه ده چې یوه ورځ به ملت له دوی څخه دنوروجنایاتو دمحاسبې ترڅنګ دیوې یوې افغانۍ حساب واخلي اودوی به دملت په وړاندې ذلیل او شرمنده ولاړوي.



له څرک مجلې سره د اسلامي امارت دسیاسي کمیسون دغړي او د هیواد د نومیالي جید عالم شیخ القران والحدیث حضرت

# مولانا شهاب الدین دلاور صاحب (مدظله العالي) علمي مرکه

- ځوانانو طالبانو ته مې نصیحت دادی چې له فیسبوک سره دې مقاطعه وکړي، ورنه باوري دې شي چې هیڅ به ترینه جوړ نه شي.
- په شپه او ورځ کې دې «اته ساعته» خوب «څلور ساعته» لمونځ ، ډوډۍ او تفریح؛ «دولس ساعته» دې سبق ویل او مطالعې ته مختص کړي؛ دا ډول تقسیم الأوقات به یې ان شاء الله دعلمي کامیابۍ ضامن وګرځي...

مرکه کوونکی
خبیراحمد مجاهد

پوښتنه : عزتمند شیخ صاحب که څه هم تاسې تعارف ته محتاج نه یاست سیاسي اوعلمي مقام مو له هیچا پټ نده خو دمرکي دمعمول مطابق که شفقت وکړی او دخپل ژوند مختصر- معلومات درنو لوستونکو ته ورکړی خوشحاله به شو چې دې فاني دنیا ته مو چیرته او کوم کال سترګي رڼې کړي، ابتدايي، منځنۍ زدکړي مو چیرته ترلاسه او بالاخره فراغت مو چیرته وشو؟

بسم الله الرحمن الرحیم

جواب

له هرڅه مخکې که اجازه راکړئ چې د څرک مجلې له درونو اراکینو څخه خصوصًا او د افغانستان د اسلامي امارت د فرهنګي کمیسون له مشرانو، لیکوالانو او منسوبینو نه عمومًا مننه وکړم چې د تاریخ په دې حساسو مرحلو کې یې دین او وطن ته نه هیریدونکي خدمتونه کړي او په ډیرو ناچیزو امکاناتو او وسائلو سره په ډیرو سختو شرائطو کې د هیواد او ددین ددښمنانو د پوچو تبلیغاتو ځواب په ډیره میړانه سره ورکړی او د ټول امت مسلمه اذهان یې عمومًا او د خپلو هیواد والو اذهان یې خصوصًا په جهادي جذبه او اسلامي روحیه سره تنویرکړي او د دښمن د شیطاني میډیا له دسایسو نه یې باخبره ساتلي دي.او یوځل بیامو مننه کوم چې ماته مو د اختصاصي مرکې وخت راکړ چې ترڅو د شخصي ژوند په هکله درسره د زړه خواله وکړم .

قدرمنو د څرک د مجلې تنظیموونکو او مینوالو! زما نوم شهاب الدین، تخلص مې (دلاور) د مرحوم مولوي صاحب سید اکبر (دلاور) ځوی، په قوم (مشواڼی) د لوګر ولایت په مرکز د بابوس په کلي کې په «۱۳۴۱ هـ شمسي کال» د مرحوم مولوي صاحب سید اکبر (دلاور) په علمي او جهادي کور کې مې دې فاني دنیا ته سترګي رڼې کړي دي .

(۲)ـ ابتدائي زده کړې مې له خپل مرحوم پلار او د هغه مرحوم له ځینې مخلصو شاګردانو څخه د لوګر ولایت په مختلفو

شخصي درسونو کې تر سره کړي دي او منځنۍ زده کړې مې هم له خپل مرحوم والد صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ څخه ترسره کړې . لوړې زده کړې مې د پاکستان د پښتونخوا صوبې په مختلفو مشهورو مدارسو کې له متبحرو او غښتلو عالمانو څخه وکړې او فراغت مې له مشهورې اسلامي جامعې (دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک ) څخه په ۱۴۰۵هـ ق کال کې شوی دی .

پوښتنه ـ دقدر وړ شيخ صاحب ستاسي والد ګرامي مرحوم مولوي صاحب سيداکبر دلاور رحمه الله تعالی په علمي تبحر سربيره يو نوميالی مبارز او حقپال سياسي او جهادي شخصيت هم وو که يې په سياسي او عمده مهمو علمي اوولسي خدمتونو لنډه رڼاواچوي خوشحاله به شو؟

جواب ـ اروابناد والد صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ مې د طالبۍ په دور کې د لوړ ذهانت او فطانت په اساس دخپلو استاذانو له خولې په فضلي (نابغه) شهرت مونډلی ؤ. دنوموړي د غزني د (نور المدارس الفاروقيه) مدرسې نه چې په خپل وخت کې د هيواد په سطحه فوق العاده د علم مرکز او منبع ګڼل کيده، په اتو کالو کې نه يوازې د خپل ټولګي بلکه د ټولې مدرسې عمومي اول نومره و، او آخيري فراغت يې هم په عمومي اول نومره ګۍ سره شوی او بيا يې د لوګر ولايت په بابوس ، موسهي ( چې په هغه وخت کې د لوګر پورې مربوطه علاقه وه)، ګمران اومغل خيلو (دا هغه مهال چې کله د مغل خيلو مير صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ بندي شو، نو دی يې دوه نيم کاله مجانًا بلاعوضه جانشين و، او د مير صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ ټولو شاګردانو ته يې تدريس کاوه او هم يې د مغل خيلو ملايي سمبالوله) ،زقوم خيل (د برکي برک مربوطه لويه علاقه ده)، ميروال، سپينه کلا کې تدريس وکړ او آخيري تدريس يې پنځه کاله مسلسل په الوزيو کې انجام کړ (دالوزيو سيمه د لوګر د مرکز مربوط ده) اوهلته يې شانداره تدريسي- خدمات سرته ورسول چې آثار يې اوس هم په هغه غيرتي او باديانته قوم کې ښکاره او څرګند دي. اروابناد والدرَحِمَهُ اللَّهُ صاحب مې د تدريس په منځنيو کلونو کې د لوګر د مجاهدو، ويښو او سرښندونکو

علماوو په اصرار د ديارلسمي دورې د ولسي جرګې لپاره د پارلمان د غړي په صفت له مرکز نه او له برکي برک ولسوالۍ نه مرحوم مولوي محمد نبي محمدي صاحب مجبور کړل شول چې ځانونه کانديد کړي او بالآخره دواړه نوميالي، جهادي او غيرتي کانديدان د لوګر د باشهامته، با ديانته او علم پروره خلکو له خوا په ډير لوی او قاطع اکثريت سره د ديارلسمې دورې د پارلمان لپاره په داسې حال کې کامياب شول چې ولسي جرګې ته حفيظ الله امين، ببرک کارمل او داسې نور د اسلام ستر دښمنان هم کامياب شوي وو. مرحوم والد صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ په پارلمان کې نه هيريدونکي خدمتونه اسلام او هيوادوالو ته وړاندې کړل او د کمونستانو سره يې پنځه کاله مبارزه وکړه، اوبالاخره يې هغوی له شرمونکې ماتې سره مخامخ کړل، چې د ټولو جريانـاتو بيانول يې دا مرکه د ځايولو ظرفيت نه لري.

پوښتنه : عزتمنده : څرنګه چې ستاسي والد ګرامي بابصيرته عالم او سياسي هستی هم وه ستاسي په ګډون دخپلو زامنو په باب څه تمنا اوارزو وه چې څنګه زدکړې وکړي او څه ډول شخصيتونه ترينه جوړشي؟

جواب ـ زموږ والد صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ د ټولو زامنو په هکله عمومًا او زما په هکله خصوصًا دا توقع او ارزو وه چې موږ دده په څيرعالمان شو او د اسلام او هيواد لپاره رښتيني خادمان جوړ شو اوهم مو زده کړې بايد ډيرې قوي او دقيقې وي.

پوښتنه : ستاسې دطالبی په دور اووختونو کې عمده سختياني او مشکلات سه وو او په مخ کې موکله داسې موانع پيښ سوي چې درسونه مو له ځنډ او ځنډ سره مخ شوي ؟

جواب ـ داچې ما لومړی زده کړې له خپل والد رَحِمَهُ اللَّهُ او يا دهغه له مخلصو شاګردانوڅخه تر سره کړي دي، نو د والد صاحب او د استاذانو دشفقت په طفيل، لله الحمد له کوم خاص ځنډ او ځنډ سره په تعليمي ساحه کې نه يم مخامخ شوی، البته يوائينی ځنډ او ځنډ چې مخې ته راغی هغه د ثور کرغيړن

انقلاب ؤ، چې نه تنها زه بلکه ټول هیوادوال یې له ډېر بـد حالـت سره مخامخ کړل.

پوښتنه : قدرمنه که ممکنه وي او مناسبه یې بولی دطالبي په دوره کې په خپل تقسیم الاوقات لګ رڼا واچوی چې کله مو کتابونه لوړ او سخت شول ، مطالعه مو څو ساعته کوله ، خوب مو څومره وه او له ملګرو سره تفریح او مجلس تـه مـو څـومره وخت ورکړی وو ؟

د طالبۍ په دوره کې مـو خپلـو درسـونو تـه خاصـه توجـه کوله، په طالبۍ کې راسره زیات شـمیر شـاګردان اوسـیدل چـې مابه ورته مستقل درس وایه. د سهار له لمانځه وروسته بـه مـې شاګردانو ته تدریس کاوه، او د صرفو، نحـوي، منطـق او اصـولو کتابونه مې ورته تدریس کول، حتی د وړې دورې په وخت کـې داسې هم پیښه شوه چې د دورې ملګرو مې له یوه استاذ سره پـه سبق کـې خفګـان راغـی او لـه هغـه مبـارک اسـتاذ رَحِمَهُ اللَّهُ سره مشکوۀ شریف (ج: ۲) او هدایه (ج: ۳) وه . ټولو ملګـرو مـې پـه یوه اتفاق له استاذ محترم څخه دواړه کتابونـه پرېښـودل، او زمـا په فکر چې ملګري مې ملامت وو، ما مې له ملګروڅخه لار جـدا کړه او ورته مې وویل چې: دا استاذ به زه هیڅ کلـه هـم خفـه نـه کړم او درس به ترینه تر آخیره کاله وایم، البتـه اللـه ﻋ راتـه هغـه کتابونه داسې را زده کړل چې ورته «من حیث لایحتسب» مبارک کلمات استعمالیدی شي، نو سهار به مې په خپل وخت کې له دغه استاذ څخه په داسې حال کې درس وایه چې بل هیڅ شاګرد به هم درسګاه ته نه ورته راته، استاذ محترم راته یـوه ورځ وویـل: کـه تا هم کتابونه رانه پرېښودل پـه هغـه ورځ بـه زه لـه مدرسـې نـه ځواب یم، ماورته وویل: استاذ محـترم! هـیڅ کلـه بـه زه سـتا پـه درسونو کې ان شاء الله غیرحاضري هـم لا ونکـړم، هماغـه و چـې زما ملګري درې میاشتې وروسته ماته راغلل او لـه ماڅخـه یـې وغوښتل چې زموږ خومکمل کال ضایع شو، نو کـه تـه مـوږ تـه مشکوۀ شریف (ج: ۲) او هدایه (ج: ۳) شروع کړې، ما ورتـه پـه ډېر اصرار سره وویل : چې راشئ له همدې مبارک اسـتاذ نـه یـې وواییئ، خو دوی نه منله، بیا مې له استاذ څخـه اجـازه واخیسـتله او دوی ته مې دواړه ذکر شوي کتابونه شروع او تر آخیره پـورې مې په ډېر ښه انداز کې ورته ولوستل. زما معمـول دا ؤ چـې پـه رسمي وخت کې به مـې پـه ډېـر دقـت سره خپـل درسـونه ویـل، قیلولې ته مې خامخا وخت ورکاوه او له مازدیګره تر ماښـامه بـه مې تفریح کوله، له ماښـام نـه وروسـته مـو مطالعـه، ډوډۍ او د ماخوستن لمونځ اداکاوه بیا بـه مـې د شـپې تـر (څـو سـاعتونو) پورې (ماشاء الله) مطالعه کوله.

پوښتنه : جناب ! که دخپلو څو تنو هغـو اسـتادانو نومونـه راته واخلی چې پوهیږی علمي فیض او برکت مو زیـات ورڅخـه اخیستی دی او دهغوي خلوص او لـوریني مـو اوس هـم پـه زړه اوذهن کې نقش دي

جواب ـ زما هر استاذ الحمد لله په خپلـو مراتبـو کـې د لویـو صفاتو او اخلاقو نموني او د فیوضاتو منابع وو، خصوصًا حضرت والدرَحِمَهُ اللَّهُ صاحب، حضرت شیخ القرآن د شاه منصور باباجي (نـور الهـادي رَحِمَهُ اللَّهُ، شـیخ الحـدیث مولانـا عبـد الحـق رَحِمَهُ اللَّهُ، شـیخ الحدیث مفتي محمد فریدرَحِمَهُ اللَّهُ، شیخ الحدیث محمد نعیمرَحِمَهُ اللَّهُ ، شیخ الحدیث عبدالقدوس جانرَحِمَهُ اللَّهُ ، شیخ الحدیث الحـاج محمـد صـادق رَحِمَهُ اللَّهُاو حضرت مولانـا محمـد سـید قـریشرَحِمَهُ اللَّهُ بابـا (نورالله قبورهم) د نمونې په توګه یادولی شم، البته نشم کولی چې په دغو ذکر شویو او یا نورو استاذانو کې په خپل قلم تـوپیر بیـان کړم، په داسې حال کې چې الحمد لله تر اوسه مـې تـر خپلـه وسـه هیڅ استاذ په علمي سطحه نه دی خفه کړی .

پوښتنه: که ممکنه وي اوپه یاد مو پاته وي ، دهغو یوشمیر ذهینو ملګرو نومونه ذکر کړی چې په وړې او لویې دورې کـې سره همدرسي پاتې شوي یاست او ستاسي له نظره پکې له ورایه دښو او جیدونو مدرسونو ښې نښاني ځرګندیدلي؟

جواب ـ په لویه دوره کې راسره داسـې ممتـاز ملګـري وو چې زیاتره یې ددې عصر لـوی محـدثین، مفتیـان او یـا پـه ډیـرو

بارزو ديني خدماتوکې مصروف خدمت شول، چې له هغې جملې نه يې دشيخ الحديث شهيد نصيب خان رَحِمَهُ ٱللَّهُ ، د افغانستان د اسلامي امارت د ستري محکمي رئيس مولوي نورمحمد ثاقب، زما محترم ورور حضرت مولانا فضل عمر دلاور، د سرحد دارالعلوم شيخ الحديث احسان الحق ، د پېښور د باړه گيټ د تعليم القرآن د مدرسې شيوخ: حضرت شفيع الله ، حضرت عطاء الرحمن ، حضرت محمد رسول، د پېښور د حيات آباد د شاه ولي الله د مدرسي حضرت سيد بصير شاه صاحب او د لوگر ولايت نوموتی عالم حضرت معين الدين د کنجک او ..... نومونه د خاصې يادونې وړدي، چې په مجموع کې زموږ د حديثو دوره له ډېرو ممتازو ملگرو تشکيل وه.

پوښتنه : دقدر وړ شيخ صاحب : تدريس مو له کوم ځايه او کتابه پيل کړ او که داراته ووايي چې ددومره کاميات تدريس راز مو په څه کې وو (مطالعه ، داستادانو دعاگاني که بل څه ؟)

جواب ـ لکه څرنگه چې مخکې مې يادونه وکړ ه په طالبۍ کې مې صرف، نحو، تر تحرير کنديا پورې منطق، هدايه، مشکوة شريف چې دا کتابونه مې په کراتو مراتو تدريس کړي و، البته چې کله فارغ شوم نو څو خبرې مې له ځان سره فيصله کړې:

(الف) ـ تدريس به له وړو کتابونوڅخه شروع کوم. (باء) ـ قوي مطالعه به په داسې انداز سره کوم چې گويا دا کتاب بيا په ټول عمر کې راته د تدريس لپاره نه ميسر ـ کيږي. (جيم) ـ شاگردانو سره به نهايت اخلاص کوم او ترهغو به يې ورسره دښووني په مهال تکرار وم چې زده يې شي .

د تدريس په کاميابۍ کې مې مهم رول د والدينو مرحومينو او د استاذانو محترمينو د ادب برکت او دهغوی قبول شوې دعاگانې وې.

پوښتنه : جناب شيخ صاحب وفاق المدارس دفنونو ډيری کتابونه له نصابه ويستلي دي، او گڼ علمای کرام هم اوس په دې خبره همنظري ښيي چې دمنطقو، فلسفي او حکمتو کتابونه دې له تدريسي نصابه حذف شي، دوخت ضائعه بولي ستاسي ارزونه اودريځ څه دی؟

جواب ـ د وفاق المدارس له نصاب سره زه پخپله موافق يم او بهترين ترميم او تزييد پکې شوی دی، د منطق او فلسفې له دغه اندازې څخه زيات ويل په اوسنيو شرائطو کې بالکل د وخت ضياع او عبث دي.

پوښتنه ـ هرکال زرگونه علمای کرام له مدارسو فارغيږي خودتدريس ميدان ته دگوتو په شمير مخه کوي تاسې دغه علمي انحطاط اوزوړتيا ته په کومه سترگه گوری او دنقص ځای يې چيرته وينی؟

جواب ـ رښتيا هم هر کال په زرگونو طالبان فارغيږي، خو تدريس ته ډير لږ کسان مخه کوي، زما په اند ددې عمده عوامل دادي (۱) ـ زموږ افغاني مدرسې تر ډيره حده غير معياري دي. (۲) ـ د چلونکو يې د «کيف» پر ځای ټوله توجه «کم» ته وي، الا ما شاء الله (۳) ـ د استاذانو توجه او مسابقه هم د شاگردانو ډير والي ته وي (۴) ـ او تر ټولو لوی عامل يې دادی چې زموږ نا مساعده او ترخه شرائط دي، چې په نظر کې نيولو سره يې بيا ډيره گرمه هم شاگردانوته نه راجع کيږي، چې دوی له يوي خوا درس وايي او له بلې خوا د دنيا له لوی طاغوت سره په مبارزه لگيادي. البته که له يوې خوا ددغو ناخوالو په وجه عمومي علمي انحطاط تر سترگو کيږي، خو له بلې خوا الله الحمد په نوي ځوانانو کې بيا ډير بااستعداده اشخاص هم وينو چې په ډيرو ساحو کې دښه خدمت اميدونه ترې کيدی شي .

پوښتنه ـ دخپلو تجربو او لوړو ژورو په رڼا کې داوس دور طالبانو ته مو نصائيح څه دي چې څنگه له وخت څخه کماحقه استفاده وکړي ؟

جواب ـ ځوانانو گرانو طالبانو ته مې «الف» نصيحت دادی چې له فيسبوک سره دې مقاطعه وکړي، ورنه باوري دې شي چې

هیڅ بـه ترینـه جوړ نشي- «بـاء» پـه شـپه او ورځ کـې دې «اتـه ساعته» خـوب «څلـور سـاعته» لمونځ ، ډوډۍ او تفـریح «دولـس ساعته» دي، سبق ویل او مطالعي ته مختص کړي، دا ډول تقسیم الأوقات به یې ان شـاء اللـه د علمـي کامیـابۍ ضـامن وګرځـي. «جیم» په اوس وخت کې هر طالب ته عربي، اردو، انګریـزي ژبـو اود کمپیوټر زده کول نهایت ضروري دي او د مدارسـو چلونکي باید دې ته مختص ساعتونه په نظر کې ونیسي ، البته دا پـه یـوه وخت کې نه زده کیږي، بلکې دادي نمبر وار تر فراغتـه زده کـړل شي. «دال» هر طالب العلم باید لږ تر لږه د قرآن کریم آخیري سپاره له تجوید سره حفظ کړي او هم دې تقریر او تحریر ته خاصه توجه وکړي.

پوښتنه: عزتمند شیخ صاحب خبرشوي یو چې تاسو په خپل یوعالم سیاسي بوختیا سربیره دبخـاری شریـف یـوه ډیـره شـامله، هراړخیزه اومعتمده شرحه ( شهاب الباري) لیکلې او څوجلده یې چاپ شوي هم ده

کـه شـفقت وکـړي دنومـوړي شـهکار تـالیف پـه بـاب لوستونکو ته معلومات ورکړی چې باعث اواړتیا څه وه اودکومو وجوهاتو له امله مو دغه سـترکارته اوړه ورکـړه کـه دشرحـي پـه اهمیت اومشخصاتو توضیحات ولوروی

پوښتنه ستاسي په اند علمای کرام دتالیف او ترجمي برخي ته بائید څومره وخت ورکړي خواری وکـړي ،او ترشـا مسـتند او معتمد تالیفات اوتصانیف پریګدي؟

جواب ـ د بخاري شریف د شرحې (شهاب الباري) دتـالیف باعث دا وو، چې د پیښور دګلبهار په دارالعلوم هادیه کـې راسره د لـویې دورې د اکـثرو نـورو کتـابونو پـه شـمول، درې کالـه مسلسل د بخـاري شریـف تـدریس هـم را پـه غـاړه و، دغـه درى کلونه مو مطالعې ته ډیره زیاته توجه کړې وه، بیا د اللـهﻷ تعـالى اراده وه چې په بل دیني خدمت کې مصروف شوم، چې عذر مـې هم الوالأمرو ته منظور نه شو، له بلې خوا مـې د حـدیثو لـه درس سره بې سارې مینه پیـدا شـوي وه او هـم مـې ډیـر لـوی مشـائخ ولیدل چې ډیر ښه تدریسي خدمات یې ترسره کړل خو لـه وفـات سره سم یې له شاګردانو نه علاوه نور کوم علمي اثر پـرې نښـود، چې د هغوی دغه علمي ضـائع بیـا ډیـرو د علـم مینـانو پـه ډیـر فسوس سره یادوله ، زه په خپل بې وسۍ معترف یم خو بیا مې هم په دې قطار کې لکه د حضرت یوسف علیه السلام د هغې ناتوانه خریدارې بوډۍ پـه څیـر ځـان شـاملول وغوښـتل کـه مـې اللـه ﻷتعالى په دې زمره کې په خپل بې پایانـه عنایـت سره وشـمیري. [وما ذالک علی الله بعزیز] بل داچې زموږ په خپله ژبه (پښـتو) کې ددې أصح الکتب بعد کتاب الله خدمت چا کړی نـه ؤ. او پـه عین حال کې خپله ژبې هم راباندې خـاص حـق لـري چـې یوڅـه ورته پیش کړو .

د شهاب الباري اهمیت او مشخصات په لاندې ډول دي:

»۱ «په دې شرحه کې د حدیث متن پـه صـحیح اعـراب سره وړاندې شوی. «۲» حدیث په روانه پښـتو ژبـه ژبـاړل شـوي دي. «۳» د هر حدیث د راویـانو احـوال بیـان شـوي دي. «۴» د حـدیث مکمله تشریح شوې ده. «۵» د مقام سره مناسـب د حـدیث صرفي، نحوي، بلاغي او فني تحقیق شوی دی . «۶» له حدیث نـه مـأخوذ فقهي مذاهب په تفصیل سره بیان شوي او هم یـې د تنقیـح المنـاط وضاحت شـوی دی. «۷» لـه مربـوط حـدیث سره د فقهـي مـذاهبو دلائل په تفصیل سره بیان شوي دي. «۸» نورو فقهي مذاهبوته پـه اخـتلافي مبـاحثو کـې د هغـوی د دلائلـو لپـاره داسـې لطیـف توجیهـات بیـان شـوي دي چـې د حنیفـي مسـلک اقربیـت الـى الحدیث په زړه او دماغ کې راسخ کوي او په ټولـو مبـاحثو کـې حتی الوسع د روایاتو تطبیق او توافق په نظـر کـې داسـې نیـول شوی دی، چې ترڅو (ما أمکن) ټول روایات معمول بهـا وګرځـي او د حنیفي مذهب په ترجیح او تائید کې هم د بـل امـام او فقهـي مسلک د عظمت او احترام پـوره خیـال سـاتل شـوی دی. «۱۰» د امام بخاري رَحِمَهُ ٱللَّهُ د معلقاتو مفصل وضاحت شـوی دی. «۱۱» د حدیث له خپـل بـاب سره د مطابقـت مکمـل وضـاحت شـوی دی.

«۱۲» له حدیث نه مستنبط احکام ذکرشوي دي. «۱۳» د هرباب له خپل کتاب او له سابق باب سره مناسبت بیـان شـوی دی. «۱۴» د هر ترجمة الباب نحوي تشریح شوې ده. «۱۵» د هر ترجمة الباب د اغلاق او ابهام مکمل وضـاحت او تشریـح شـوې ده. «۱٦» د هـر ترجمة الباب له عقد نه د امام بخـاري رَحِمَهُ ٱللَّهُ غـرض بیـان شـوی دی. «۱۷» د اول جلد په پیل کې د علم حـدیث مکملـه او مفصـله مقدمه ذکر شوې ده .«۱۸» او هم ورسره د صحیح البخاري مکمله او مفصله مقدمه ذکر شوې ده. «۱۹» د متشـابهو تراجمـو فـرق او وضاحت شوی دی. «۲۰» د «باب بلا ترجمـة» مفصـل وضـاحت او دعلماؤ توجیهات بیان شوي دي. «۲۱» د هر کتاب پـه اخـر کـې د براعت الاختتام وضاحت شـوی دی. «۲۲» هـر بحـث لـه مسـتندو حوالو نه برخمن شوی دی.

پوښتنه : دپای پوښتنه مو داده چې عصري علوم ، ددیني علومو په پراختیا ، تشـهیر کـې څـومره رول لـري او دیـوه دینـي طالب او دیني عالم لپاره چې دعصري پوهي کمال هم لـه ځـان سره ولري څومره مرسته ورسره کولای شي

همدا ډول که یو ډاکتر، انجنیر او استاد غـواړي پـه تـولني کې دخدمت ښه مصدر وګرځي کماحقه دیني پوهـه ورسره څـومره ضروري ده؟

جواب ـ هغه علماء کرام چې الله تعـالی ؏ورتـه پـه علومـو کې خاص مهارت ور په برخه کړی وي، په هغه فن کـې چـې دی ورسره خاصه مینه او پکې خاصـه ملکـه لـري لـږ تـر لـږه بایـد د ورځې دوه ساعته د هغه فن په یوه مهم کتاب لیکنه وکـړي، چـې دا به د راتلونکي نسل لپاره یوه ښـه خـدمت او دده لپـاره بـه تـل پاتې جاري صدقه وي او دده تر مرګه به دی ډیر مستند او معتمد تالیفات اسلامي امت ته وړاندې کړي .

»۱۵ «په ننی زمانه کې چې د حق او د باطـل سـنګرونه لـه نور هر وخت نه په هر میدان او هـره شـعبه کـې پـه ډیـره سـخته جګړه باندې ګرم دي، نو ډیره لازمه ده چې اوسني علماء کـرام مـو ډیـر محقـق، مـدقق، جـامع او لـه دینـي علومـو سره سره عصـري علوموته هم کافي لاس رسی ولري، خصوصًا څو مهمـې ژبي زده کول د نن سبا د علماؤ د مبارزي او خدمت لپـاره ډیـرې اړینـې او ضروري دي او دا به یې د اسلام د خدمت او دده د کامیابی لپاره ډیر لوی ممد واقع شي.

»۱٦ «همدا شان مؤمنو او متعهدو د عصري علومو څښتنانو ته هم ددیني علومو تر یوه حده پوهـه خو لازمـي او اضـافه ورتـه ډیره ګټوره ده او په اسلامي او افغاني جامعـه کـې بـه ورتـه پـه ډیره درنه او ارزښتناکه سترګه کتلی شي.

پوښتنه ـ جناب ـ څرک مجلې او پـه مجمـوع کـې فرهنګـي کمیسون ته مو که دفرهنګي اومطبوعاتي امورو دنور پرمختـګ په باب څه مشوري اونصائح وي مهرباني وکړی؟

جـواب ـ د څـرک مجـلي درنـو منسـوبینو او د فرهنګـي کمیسون مشرانو ته خو لومړی ددې ستر خدمت او قلمـي جهـاد چې دوی یې دا نولس کاله په سختو شرائطو کـې پـر مـخ وړي د کامیابی مبارکي ورکوم او ترینه مې د لا زیـات خـدمت امیـد او توقع ده، خصوصًـا د مبـارزو او مجاهـدو علـماء کرامـو د تـاریخ خونـدي سـاتل او همـدا شـان د علـماؤ، حفـاظو، طلبـاؤ او عـامو سرښندونکو استشهادي اتلانو لنډه پیژندنه د یوه خلص تاریخ پـه شکل کې د هر ولایت مستقل او په آخیر کې بیا د ټول افغانستان په سطحه یوجامع تاریخ لیکلو ته دې خاصه توجـه وکـړي؛ ځکـه زیاتره وخت تاریخ د اسلام د ښمنان مسخ کـوي او یـا یـې داسـې تحریف او غلا کوي چې د حقبینـو او حقجـوي مسـلمانانو اصـلي خیرې په ډیره بي غیرتی سره آینده نسل ته پیش کړي چې مثالونه یې تاسو ته هم واضح دي .

په آخر کې مو په پاک الله سپارم او له مرکې نه مـو بیـاهم یوجهان مننه

والسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته.



# کاذب امیدونه

صارم

وايي چې اوبو اخيستی داوبو ځک ته هم لاس اچوي که څه هم په دې ښه پوه وي چې هيڅ لاسنيوی يې نه شي کوی، خو داچې دغرقېدو يقين يې پوخ وي نودايې وروستی هڅې وي، چې له دې ور هاخوا بل څه نه ويني .

همدا ډول هغه خلک او قوتونه هم په دې مثال دی چې دخپلو غلطو کړو وړو په وجه يې دخپلو ټولو اميدونو او هڅو نتيجه په صفر ولاړه وي او په لاس ورتلونکې پايله يې ناهيلي وي، نو په ورته ډول له همدومره قوت او ځواک سره سره بياهم داسې څه ته لاس اچوي چې ډېر خندوونکي اود حيرانتيا وړ وي .

راځئ که لرې نه ځئ نو په افغانستان کې يې ښه مثال ترسترګو کولی شو، پردغه هيواد تپلی دامريکا دلاسپوڅي حکومت ناکامي، کمزوري، ټکي برګي، فساد، بې کفايتي، نااهلي او ورته نور ټول عيبونه دنياته معلوم دي، دبې کفايتۍ او نا اهلۍ ډېر شواهد او اعترافات پرې له بېلا بېلو آزادو منابعو او کره ذرايعو له لوري رابرسېره شول او لا راوړاندې کيږي، خو بيا هم يولړ هڅې کيږي چې په کاذبو اوناکامو وعدويې عيبونه پټ او يوډول قوت ور وبښل شي.

دبشر دحقوقو نړيوال سازمان، نړيوالې جنايي محکمې او "سيګار" دڅارادارې په تېره مياشت کې ټول هغه جنايتونه، رازونه، او حقيقتونه پسې رابرسېره کړل چې په هيڅ قانوني او حقوقي لحاظ نور دپاته کېدو او ملاتړ جواز ورته نه پاتې کيږي داکتوبر په ۳۰ مه نېټه دبشري حقوقو نړيوال سازمان په خپل نوي راپور کې په افغانستان کې دامريکايانو له جنګي جنايتونو څخه پرده پورته کړې او ويلي يې دي چې دامريکاداستخباراتو مرکزي ادارې (C I A) په دغه هيواد کې له بشر ي حقوقو څخه سرغړونه کړې او په پراخه پيمانه جنګي جنايتونه يې ترسره کړې .

خو دغه سازمان دايادونه په کلکه کړې چې دغه جرمونه ملي امنيت ته منسوب قطعات صفريو،دوه، درې او صفر څلور ترسره کوي، اودکابل ادارې څخه يې جدي غوښتنه هم کړې چې دغه قطعات دې منحل کړي

هغه امنيتي نهاد چې دکابل اداره يې د اتلسو کلونو لاسته راوړنه بولي او تر ډېره پرې امريکايان او دوی نازېدل هغه ملي اردو! او عسکر دي چې د طالبانو په وړاندې يې مورال بايللی دی، هره ورځ په درځنو درځنو عسکر طالبانو ته تسليمېږي او سمبې پرېږدي .

سيګار په همدې تېراو درواني مياشتې په لمړيو کې يوبل راپور دامريکاکانګرس ته وليږه او ويلي يې وو چې افغان ځواکونو

دفاعي حالت غوره کړی او"۶۰" سلنه تلفات یې د دفاع پرمهال زیات شوي .

د افغانستان د بیارغونې لپاره د امریکا د متحده ایالاتو په مرستو باندې د څار اداره «سیگار» وايي، په وروستیو دریو میاشتو کې افغان امنیتي ځواکونه په دفاعي حالت کې وو او تلفات یې لوړ شوي.



دامنیتي سرتېرو زیات شمېر خلگ یې د نشه یي توکو په کښت او قاچاق اخته دي.

د راپور له مخې، په دې هیواد کې له نشه يي توکو سره د مبارزې په برخه کې د افغان حکومت هڅو کومه ځرگنده پایله نه ده ورکړې او د کوکنارو د کښت نسبي کموالی د حکومت د مبارزې په پایله کې نه؛ بلکې د بارانونو د کمښت له امله رامنځته شوی.

د سیگار اداري د امریکا کانگرس ته په لېږل شوي وروستي راپور کې لیکلي، چې په دې وروستیو دریو میاشتو افغان امنیتي ځواکونو دفاعي حالت غوره کړی چې له امله یې د تېر کال د همدې وخت په پرتله تلفات ۵ سلنه زیات شوي.

راپور زیاتوي، چې د طالبانو د بریدونو اغېزه پنځه سلنه زیاته شوې او افغان حکومت په دې وروستیو کې هڅه کړې د پولیسو او عسکرو د مرگ ژوبلې کره شمېره پټه وساتي.

همدا اوس دنومبر په لسمه نېټه رسنیو دسیگار نوی راپور خپور کړی او ویلي یې دي چې دامنیتي سرتېرو زیات شمېر دنشه یي توکو په کښت او قاچاق اخته دي د افغانستان په بیا رغونې باندې د امریکا د متحده ایالاتو د څار اداره «سیگار» وايي، امریکا په افغانستان کې له نشه یي موادو سره د مبارزې په برخه کې میلیاردونه ډالر لگولي؛ خو کومه ځرگنده پایله یې نه ده ورکړې.

امریکا غږ د سیگار له لوري د تازه خپاره شوي راپور په حواله لیکي، سره له دې، چې د امریکا متحده ایالاتو له ۲۰۰۲ زېږدیز کال راپدېخوا په افغانستان کې له نشه یي توکو سره د مبارزې په برخه کې ۸,۹۴ میلیارده ډالر لگولي؛ خو لا هم دغه هیواد د نشه یي توکو دوهم ستر تولیدوونکی هیواد دی او

له دې ټولو واقعیتونو سره سره دامریکا حکومت له خپل شته حیثیت او دعوو سره چې کوي یې ډېرځله په دې اړه داسې گام پورته کوي چې دسیاست په دنیاکې یې ترسره کول کمزوري، انحطاط او د حیثیت له منځله تلل په گوته کوي، دکابل اداره چې په ټولو سیاسي، حقوقي، اخلاقي، نظامي او اداري لحاظونو نور هیڅ نه دي ورپاته، هر نوع ملاتړ او ننگه یې دځان له بې اعتباره کولو پرته بل څه نه دي، دهمدې حقیقت په درک کولو سره اوس ډېری نړیوال قوتونه حتی دناټو غړي هیوادونه هم اوس له دې بې وسه او کمزوري اداري څخه په هغه ډول ملاتړ او کومک نه کوي لکه په پیل کې یې چې کوم امیدونه ورته لرل اوکه څه کوي نو هغه هم یوازې داسې څه وي چې غولول او تېرایستل بلل کیږي .

دامریکا دقواوو دلوی درستیز داخبره چې "...زموږ عسکر به تر راتلونکو څو کلونو افغانستان کې پاتې وي او له «اې بي سي» تلویزون سره مرکه کې یې ویلي چې امریکایي پوځیان به څو کاله نور هم افغانستان کې وجنیگیږي." هم دهمدې تېرایستنې او کاذبو امیدونو برخه ده چې هغوی ته پرې دیوڅو شپو تېرولو روحیه وربښلي شي اوبس .



# د مسخره ټاکنو نانديريزې پايلې!

معین احمد (معین)

د روان کال د تلې د شپږم له ټاکنو څخه نيږدې يوه نيمه مياشت تيريږي چې لاهم د هغو پايلې نااعلان شوې پاتې دي.

دا دريم ځل دی چې د ټاکنو په اصطلاح خپلواک کميسون د يادو ټاکنو د نتائجو د اعلان نيټه وروسته کوي خو د ټـاکلې وخـت په رارسيدو سره بيا د پايلو د اعلان په ځای له خلگو بښنه غواړي.

د ټاکنو په اصطلاح خپلواک کميسيون د دريم ځل لپاره د ټاکنو پايلې په داسې حال کې تر نامعلومې مودې ځنډوي چـې د ډيـرو انتخاباتي کانديدانو او د هغوی د منتخبينو ټوله ټاکنيزه پروسه له ياده وتلې ده.

ځکه هغوی له پيله پوهيدل چې دا پروسه د افغان ولس د اغفال پروژه ده چې د اجنبي مصالحو د اعمال لپاره پـلان شـوې اودوی يواځې په هغې کې په اشتراک کولو مامور کړل شوي دي ؛ نه د هغې د پايلو په نتيجه کې د يوه خپلواک منتخب ولسي۔ حکومـت پـر جوړولو.

د يادې ټاکنيزې مسخرې مهم لوبغاړي ښاغلی غني او عبدالله دي چې تير ځل هم د جانکيري په زور د يوه گډ حکومت په سرکې پر ولس تحميل او خپله پنځه کلنه واکمنې يې د نيويارک او واشنگټن په امنيت ساتلو کې تيره کړه.

دا خپله د اشرف غني د خولې اعتراف دی چې د ده په پنځه کلنې واکمنې کې څلويښت زره امنيتي ځواکونه وژل شوي خـو د نـا امنې کچه ديته رسيدلې چې د کابل په ارگ کې خپله دی هم ځان خوندي نه گڼي.

يعنی گډ حکومت نه پرون د افغاني مصالحو لپاره جوړشوی او نه يې نن ټاکنيزه پروسه د ملي منافعو پر اساس تر سره کړې.

ځکه خو د دې پروسې نور شرکاء د هغې له نتائجو څخه په مايوسي سره نه د هغو په ژر اعلانيدو کار لري او نه هم په ځنډيدلو.

خو اشرف غني او عبدالله ته چې امريکايانو يې د امنيتي تړون په ترڅ کې وفاداري وليدله، بيـاهم پـه ټـاکنيزې مسـخرې کـې د گډون او په هغو کې د محوري مهرو په څير د لوبيدو چانس ورکړ.

اوس به نوره هم دا پروسه او د هغې نانديری حتما د دغو تجربه شويو کرکټرونو لخوا په داسې ډول پرمخ وړل کيږي چې د افغـان ولس درانه اقدار او ملي مصالح ورکې تر پښو لاندې شي.

کوم کسان چې نا خبره په دې مسخره ورگډ کړل شوي وو هغوی به پرته له دې چې څه ترلاسه کـړي پـه نـدامت او هزيمـت تـري خالي لاس وځي او هغه ژمنې چې يې ولس او خلگو ته د ټاکنيزو کمپاينونو په مهال ورکړې وې همداسې پاتې کيږي.

خلاصه دا چې د تلې د شپږمې ټاکنيزه پروسه د افغان لانجې د لاستونزمن کولو لپاره يوه بله امريکايي دسيسه ده چې دا ځـل بـه يې هم وروستی حل د امريکايي سفارت په مداخله تر سره کيږي ، نه په ټاکنيزو صندقونو کې د اچول شويو رأيو په وسيله.

همدا ده د اشغال تر سيورې لاندې د جمهوريت او ديموکراسۍ د پلې کيدو يوه ژوندۍ بيلگه...

پای



# دفکر له سنګره

لیکوال: قدرت الله جواد

د حق د لارویانو او د طاغوت د پیروانو ترمینځ شخړه، او جار جنجال د اوسنی پیړی زیږنده نه، بلکې دا یو اوږد تاریخ لري، چې د بشریت د تاریخ له پیل څخه سرچینه اخلي، د تاریخ په اوږدو کې د تل لپاره د طاغوت لارویانو هڅه کړې ده چې د حق د مخنیوي په لار کې خپل زور وازمایي، بشر له دې رڼایي څخه بې برخې او د تورتم کندې ته یې ور ګذار کړي، ترڅو د نفس د غوښتنو سره لاس او ګریوان شي، او طاغوتیان په دې ډول الهي نور په خپل ګمان له منځه یوسي.

ددې تاریخي اوږده تاوتریخوالي په لړ کې د کفر یو مهم ګذار د اسلام په مقابل فکري جګړه ده، د فکري جګړې اصول دي چې مستعمره هېوادونه له دیني، سیاسي، علمي، فرهنګي، او اقتصادي پلوه هر اړخیز او دائمي تسخیر، ملت یې په مختلفو غولوونکو نومونو له خپلو دیني اساساتو او ملي ارزښتونو څخه لرې وساتي، فکري انحراف او تذبذب ته لیار هواره کړي، ځوان نسل په خپلو دیني مقدساتو او اسلامي شعائرو شکمن کړي، د مادرنیزم او عصریتوب په پلمه عیاشي او فحاشي ترویج، د مساوات او برابری په نوم علمي مراکز د نامحرمو د اختلاط مسکن وګرځوي،

د مسلمانو علمي او فکري شخصیتونو د تاریخ محوه کولو په پار د منحرفو، سیکولرانو او کمونستانو بېهوده تاریخ د تعلیمي ادارو نصاب ته ورداخل او د زدکړیالانو ذهنیتونه د یو ډول اضطراب ښکار کړي، ترڅو په دې کړنو سره ظالم استعمارګر خپل سیاسي، او فکري تسلط مستحکم، او د ابد لپاره د مستعمره هېواد ملت د خپل مخلص غلام وګرځوي.

حقیقت دادی هغه مهال چې زمونږ ملت خپل ځان د امریکایانو مادي او نظامي پرمختګ په مقابل کې ولید د حقارت، مظلومیت او ذلت احساس یې وکړو عقیدوي کشمکشونو سره مخ شو، د هر فکري او فرهنګي لغزش د توجیه لپاره به یې ښه په جرئت سره ویل "مونږ باید د غربي نړۍ تقلید وکړو ترڅو د نورې نړۍ سره سیالان شوو" همدې جملې زمونږ اکثریت ځوانان په فکري لحاظ داسې یرغمل کړل چې د اسلام تول حدود یې کراس، او امریکا ته په خدمت کې دومره مخلص شول چې د اسلام او مسلمان سره دښمني یې د غرب له ځناورو هم خطرناکه شوه.

په دې باب زمونږ د پوهانو، علماء کرامو او ادیبانو رسالت دادی او دا به مو ستر موفقیت هم وي چې د هېواد د ځوان نسل د کمترې احساس او د غرب په وړاندې خود باختګي یې محوه، د اسلامي نظام له مزایاوو یې خبر، د اسلام د معتدلې او متوازنې پالیسي تول ابعاد ورته تشریح کړو،

په دې یې هم پوه کړو چې اسلام د ارتجاع او تآخر دین ندی.

اسلام دغلامي او باداري فلسفه ختمه او په بدل کې یې انسانیت او بشریت ته د عزت او شرافت ژوند کولو اسلوب ورزده کړل.

اسلام د استقلال او آزادي اهمیت نړیوالو ته ور وپیژنده.

اسلام ملتونه له اسارته خلاص کړل...

د اسلام د تللی ځواک د بیا را ګرځیدو، په توتو ویشل شوي امت د بیا را غونډیدو په هیله

## استاد توریالی همت له څرک سره په مرکه کې:

# ناټو او امریکایان درې شیانو مات کړل

۱ – د الله نصرت او مدد

۲-د سرښندونکو مجاهدینو قرباني

۳- او حقپالې فرهنګي او مطبوعاتي مبارزې

پوښتنه: " ښاغلی استاد توریالی همت صاحب الله تعالی مو دجهاد، دین او هیواد دخدمتونو لپاره سرلوړي اوداوږده عمره څښتن ولره

دڅرک مجله دخوښۍ ځای بولي چې دسیاسي ،جهادي او علمي شخصیتونو سره دمرکو په لړ کې له تاسې سره مرکه لري

نو ددې لپاره چې درانه لوستوال مو له مرکې او خبرو څخه ښه استفاده وکړي که په لنډه توګه خپل تعارف ورباندې واوروي؟

جواب: بسم الله الرحمن الرحیم

د څرک د درنې او ویاړلې مجلې کارکوونکو ورونو السلام علیکم ورحمةّ الله وبرکاته

له تاسې څخه ډیره مننه چې ما ته مو د خپلې درنې مجلې په درنو او زرینو پاڼو کې د خپل نظر د اظهار موقع مساعده کړه الله تعالی مو په دنیا او اخرت کې سر لوړي لره. زه توریالی همت د عزیزالله حقاني زوی د لغمان د مرکز د ماشه خېلو کلي اوسېدونکی په قوم علي خېل یم په تېر جهاد کې د لغمان د تورغر او وربښمین تنګی عمومي قوماندان او د اتحاد اسلامي د عالي شورى او د مشرقي دجهادي شورى غړی پاتې شوی یم.

پوښتنه: مننه همت صاحب

شک نشته چې تاسې دروسانو او کمونیستانو په خلاف دتیر مقدس جهاد دتوري او قلم چلولو دواړه ویاړونه لرئ که په لنډه راته ووایی چې دجهاد له کامیابی او دکمونیستي رژیم له سقوط ورسته دافغانانو داسلامي نظام دټینګښت هیله ولې نیمه خوا شوه ایا دجهاد ځینو رهبرانو خیانت اوجفا وکړه، خارجي عوامل وو که بل څه؟

جواب: ځینو جهادي ګوندونو له کمونستانو سره ایتلاف وکړ او د دوه میلیونه شهیدانو قاتلانو ته یې عامه معافي اعلان کړه. په دې اساس د جهادي مشرانو شاوخوا کمونست خود خواه، خاین او مفسد عناصرو ځای ونیوه نو ځکه د جهاد هیله پوره نه شوه همدا شان د ګاونډیانو مداخلې او لاس وهنې هم د جهاد د هیلو د پوره کېدو په مخ کې خنډ شوې. او داسې نور عوامل.

پوښتنه: ستاسي په اند دملامحمدعمر مجاهد رحمه الله په مشرى دطالبانو داسلامي تحریک ظهور اوداسلامي امارت منځته راتلل دوخت ځومره اړتیا وه

افغانانو ته یې څه راوړل او داهم که ووایی چې کاشکي داسلامي امارت دتیري واکمنی په مهال دا او هاغه کارونه نه وای شوي؟

جواب: د ملا عمر مجاهد رحمه الله په مشرى د طالبانو تحریک منځته راتلل افغانانو ته د هوا او غذا حیثیت درلود که لېږ نورځنډ شوی وای نو نن به افغانستان د نړۍ په نقشه کې موجود

نه وای لکه څنګه چې انسان اکسیجن ته ضرورت لري همداشان د افغانستان د هغه وخت حالاتو د طالبانو غونډې تحریک ته ضرورت درلود چې افغانانو ته یې سوله امنیت او اسلامي نظام راوړ او افغانانو دوه نیم میلیونه شهیدان د همداسې نظام په خاطر ورکړي وو. او افغانستان یې له تجزیې او کورنۍ جګړې څخه وژغوره ډېرې نورې ګټې یې هم افغانستان او افغانانو ته اړولې چې شمېرل یې دلته ممکن نه دي کاشکې طالبانو ځینې کارونه نه وای کړي لکه په جنرال دوستم او جنرال مالک یې اعتماد نه وای کړی. جهادي قوماندانانو او مجاهدینو کې یې د ښو او بدو تمیز کړی وای کار یې اهل کار ته سپارلی وای زما په نظر که امیرالمومنین د قندهار پرځای کابل کې اوسیدلی او دغه راز د افغانستان ټولو ولایاتو ته یې سفرونه کړي وای او لویې لویې غونډې یې جوړې کړې وای او په خپله یې ورته خطاب کړی وای، ډېر به ښه و.

په دې سره به د اسلامي امارت ځینې کم عمره او بې تجربې ځوانانو ټولې لاسته راوړنې خپل کمال نه ګاڼه، بلکې په خپل ځان د اعتماد او باور پر ځای به یې ټوله توجه عاجزي، خاکساري او د الله هیلې ته اوښتې وای. او دا دی اوس د الهي مدد په فضل یې دا اتلس کاله د وخت سوپر طاقت په صفر بدل او د امریکا په شمول ۴۸ د ناټو نظامي فوځیانو او جنرالانو ته یې د سر په کاسه کې اوبه ورکړې او د تېښتې لار یې ترې ورکه کړې ده په کار ده چې تېرې غلطۍ تکرار نه کړي او ټولې بریاوې د الله مدد او بیا دافغانانو حمایت او قرباني وګڼي

پوښتنه: تیرو جهادي رهبرانو لکه رباني، سیاف ،حکمتیار او ځینو نورو ولې ترپایه دطالبانو داسلامي تحریک او اسلامي امارت مخالفت وکړ سره لدې چې د کوم اسلامي نظام دراتګ ناري او شعارونه هغوئ ورکول هغه طالبانو په عمل کې پلي او ثابت کړل؟

جواب: د ځینو جهادي مشرانو داسې مشاورین ول چې د طالبانو تحریک یې د ځان دپاره زهر قاتل ګاڼه.په دې اساس یې هغوی ته غلطې او خطرناکې مشورې ورکولې او د طالبانو سره د یوځای کېدو پرځای یې هغوی سره د جنګ لاره خپلوله او د ځینو جهادي مشرانو اسلامي نظام ډېر خوښ وو خو چې د هغوی په لاس نافذ شوی وای نه د بل چا په لاس. همداراز د ځینو ګوندونو حمایت کوونکو هېوادونه د طالبانو د نوم سره هم مخالف ول او په هیڅ صورت یې د طالبانو صف قوي کېدل نه غوښتل او همداراز د طالبانو په مشرانو کې ډېرهغه کسان ول چې په جهادي تنظیمونو کې واړه مجاهدین او د مشرانو بادې ګارډان پاتې شوي دي په دې اساس جهادي مشرانو کبر او غرور وکړ چې څنګه دهغه چا مشري ومني چې د دوی کشران پاتې شوي وي او داسې نور عوامل ول چې جهادي مشران یې طالبانو سره ملګرتیا ته نه پرېښودل.

پوښتنه: ښاغلی همت صاحب،

دتیر جهاد په دوران کې عربو مجاهدینو سیاف، رباني او دنظار شوراته په سلګونه میلونه ریال او کلداري ورکړي او دهغوئ په مرستو دوئ دتنظیمونو او ارګاو بارګاو څښتنان شول ، دطالبانو دواکمنی په مهال داخو څه کوي چې اسامه بن لادن رحمه الله او یا نور عربان دي اسلامي امارت ته څه ورکړي دهمدغو عرب مجاهدینو دکورونو مصرف هم داسلامي امارت له غاړې وو له بل اړخه ددیني مسائیلو دتعبیر په برخه کې هم طالبانو او عربانو دنظر اختلاف درلود

خو چې کله دمیدان او دریښتیني امتحان جای راغی نو همدغو طالبانو په عرب مجاهدینو داسې غیرت وکړ چې ټوله واکمني یې ورڅخه قربان کړه

ولې سیاف، رباني او دنظارهیت شورا بیا یو یو عرب نیوه او ژوندي یې په امریکایانو دډالرو په بیه خرڅول

دغه پرتله او حالت څنګه ارزوی ایا طالبان نه پوهیدل که سیاف رباني او نظار شورا او ښیاران ول ، یعنی ددغې تاریخي وفا او جفا په باب ستا کلمات څه دي؟

جواب: ځینې جهادي ګوندونو کې داسې کسانو ځای نیولی و چې هغوی ته اسلام او افغانیت کوم ارزښت نه درلود بلکه هغوی ته ډالر او چوکۍ اهمیت او ارزښت درلود که امریکا ورته د خپلو مشرانو په سرډالر او چوکۍ ورکړې وای دوی به خپل مشران هم ورته سپارلي وای نو عربان لېرې خبره ده که امریکا داسې خلکو ته پیسې ورکړي نو خپل ورور او پلار هم ورته سپاري همداسې شوي هم دي پاتې شوه د طالبانو او عربانو خبره داچې طالبانو خپل ځان او حکومت له عربانو قربان کړهمدا شان عربانو هم د طالبانو د حکومت د ټینګښت او راتګ له پاره د سر او مال قرباني ورکړې ده که طالبانو هم د عربانو سره د ځینو جهادي ګوندونو غوندې جفا کړې وای بیا خو به د افغانانو تاریخ راتلونکو



نسلونو تـه لـه پيغـور او شرم نـه ډک تاريخ پاتې وای اوس خو د انسـانيت په تاريخ کې د مېلمنو سره افغانانو د غيـرت او شـهامت ډک تـاريخ پـه زرينـو کرښـو ثبـت او ترقيامتـه بـه نړيوال د مثال په توګه دا کارنامـه او غيرت يادوي او بله داچې د طالبـانو او عربانو هدف يـو دی او ددين پـه اصولو کې هيڅ اختلاف نـه لـري پـه فروعـــي او اجتهـــادي مســـايلوکې اختلاف د شاګرد او استاذ، د زوی او پـلار تـرمينځ هـم پېښېدای شي.

پوښتنه: دا مريکا يانو اودهغوئ دمتجاوز ايتلاف په وړانـدي داسلامي امارت رواني ۱۸ کلنه معرکي ته په کوم نظر ګـوري چې په کومه خوا روانه ده ايا ۱۸ کاله وړانـدې ستا تصور څـه وه چې امريکا به لدغسې يو حالت سره مخ شي لکه همدااوس چې ورسره مخ ده؟

جـواب: د امريکايـانو خـلاف روانـه ۱۸ کلنـه معرکـه حـق او ريښتيني جهاد دی ما په ۲۰۰۳ کې يوه رساله (تازه خبر خطرنـاک سفر) په نوم شـايع کړېـده هلتـه مـا پـه ښـکاره توګـه لـيکلي چې امريکايان به انشاءالله د روسانو په څير له شرمېدلې ماتې سره مخ کيږي ځکه دا د حق او باطل مقابلـه ده د حـق او باطـل پـه مقابلـه کې تل حق بريا ترلاسه کړي.

پوښتنه: همـت صـاحب پـه سياسي او فرهنګـي ميـدان کـې اسلامي امارت ته ستا مشوري اوړانديزونه سه دي؟

جـواب: د اسلامي امارت د سياسي دفتر فعاليتونه د قـدر وړ او ګټور دي خو په کار ده چې په ډېر دقت او احتيـاط سره ناستې پاستې وشي او داسې کار ونه کړي چې مخالفينو ته د تـبر لاسـتی شي او د اسلامي امارت د تېـر ۲۴ کلـن تحريـک د اصولو او کړنـو سره تضاد ولري. او د سياسي دفتر مسولين بايـد دېـر پـه احتيـاط سره قدم پورته کړي خدای مه کړه چې بيا د دشتې ليلې او قلعـه جنګي جناياتو غونډې د جنرال مالک او جنرال دوستم له خوا چې په زرګونه تنکي تنکي طالبان شهيدان شول نن د خليلزاد په شکل کې هغه ډول فاجعه او جنايـت تکـرار شي. دښـمن دې کـه ګيـدړ هم وو تياری ورته د زمري کـوه او د دښمن هرکـار تـه دشـک پـه سترګه کتـل د هوښـيارانو کـار ده. د قطـر دفتـر بايـد خپـل ټـول فعاليتونـه د اسلامي امـارت د رهـبری شـوری سره شريـک کـړي. دښمنان غواړي چې د دوی په منځ کې اختلافات پيداکړي.

پوښتنه: همت صيب په فرهنګي ډګـر کـې داسـلامي امـارت هڅې څنګه ارزوئ.؟

جواب: فرهنګي څانګه په معمولي امکاناتو سره سره بيا هـم داسې فعاليتونه کوي لکه د يو مـنظم هيـواد د نشراتو وزارت چـې فعاليت کوي. ناټو او امريکايان درې شيانو له ماتې سره مخ کړل. ۱ – دالله نصرت او مـدد ۲-د سرښـندونکو مجاهـدينو قربـاني ۳- نشرات او دعوت هغه که د مجلـو پـه شکل دي او کـه د مرکـو او ترانو په شکل دي دا چې په زرګونو ځوانان قربانۍ ته تيـاريږي دا دالله مدد او د نشراتو برکت دی چې ځوانان هڅوي اوهره پېښه په ډېر ښه انداز سره د نړيوالو مخ ته ږدي. زما نظر دادی چې څومره مصارف اسلامی امارت په نظامي او سياسي سـاحه کـې کـوي پـه کار ده چې په فرهنګي ساحه کې له هغه زيـات مصـارف او توجـه ورته وکړي داچې د نشراتو د اداري کارکوونکي ورونـه د ګوتـو پـه شمير دی او امکانات هم ورسره ډېر محدود دی خو بيا هم دومره ډېر کار کوی چې د انسان ذهن او عقل يې نـه تسليموي. او چـې څـومره نـشرات زيـات شي پـه هماغـه انـدازه يې ګټـه نظـامی او سياسی ډګرونو ته رسيږي شاباس او افرين چې د ګوتو پـه شـمېر کسان د ۵۲ مجهزو هيوادونو د سلګونو راډيـو ګـانو، تلويزيونونو، اخبارونو او مجلو مقابله کوي بلکه له هغـو ټولـو څخـه يې ميـدان ګټلی دی چې دا ټول د الله مرسته او بيا د نشراتو د کـارکوونکو د تقوی، اخلاص او استقامت برکت دی.

# د یو هېواد او یو ملت په تاریخ کې د اشخاصو د سوانحو ونډه

سعد کتوازی

انساني ژوند د ګڼ شمېر علمي فنونو په مرسته پرمخ روان دی او بل خوا انسانانو کې د بېلابېلو مطالعاتي ذوقونو خلک شته چې هرڅوک له خپل ځانګړي فن سره مینه لري، دومره مینه چې د ژوند بېلابېلي شېبې که له بل هر فن سره تړاو ولري خو نوموړی یې له خپل فن سره د مینې له امله د هغه له زاویې تېروي او ګوري.

خو تاریخ د انسان د ژوند د کیسې په توګه یو داسي فن دی چې د نورو ټولو فنونو هغه ورسره د خپل ځانګړي فن په څېر مینه لري او هم اړ دي چې ویې لولي او ترې څه زده کړي، ځکه دا یې د خپل ژوند هغه کیسه ده چې له شتون زرونو کلونه وړاندې یې د بشر د تخلیق څخه را پیل شوې، د خپل راتلونکي پلان ورته ښیي او د دې پلان په رڼا کې ورته د ده راتلونکی ښه او یا هم بد انځوروي.

د انسان کیسه که د شخص، که یې د کورنۍ او که هم د یوې بشپړې ټولني وي، انسان یې لوستو ته تر بل هرڅه لېواله او په دې کیسه کې د ځان پېژندني تلوسه لري، تاریخ انسان ته د هغه له پیدا ینښته تر پایښته ټولي کیسې کوي.

که یو انسان د فرد په توګه په کورنۍ، کورنۍ یې په قوم، قوم یې په ملت او ملت یې په جنس بشر کې د رامنځته کېدو پوښتنه کوي.

که هغه د ځمکي پر مخ د بشر منځته راتلو او ژوند پیلولو، د ژوند ډول ډول پړاونو څخه یې را تېرېدلو او اوسني اکر (حالت) ته د راسېدلو د څرنګوالي موندلو په لټه کې وي.

که هغه د خپل هویت موندني او ځان پېژندني په هڅه کې وي، چې د بېلګې پر دود زه د یو افغان په توګه څوک یم؟ زما افغان ملت څه ډول منځ ته راغلی او له کومو بریالیو او ناکامو پړاونو راتېر شوی؟ کوم پرمختګونه او شاتګونه یې لرلي؟ له کومې پر کومه خوا روان دی؟ او...

که هغه د لومړنیو خلکو د شخصي ژوند، ټولنیز هماهنګ او هم متلاشي او پاشلي ژوند او د ژوند د بېلابېلو سړو تودو د څرنګوالي پر تړاو پوښتني.

کـه هغـه د پخوانیـو خلکـو د اصـولو، فرهنګونـو، واکمنیـو، انقلابونـو، تمـدنونو، رامنځتـه کړو نظریـو او نوښـتونو، خپلمنځي اړیکـو، تړونونـو، جګړو او مبـارزو او د ژوند د هر اړخیزي کتني اړتیا احساسوي.

که د هغه خیال ته د سترو بدلونونو راوستونکو انقلابونو، د هغو د پیلامو او عواملو، بهېرونو او پایلو د څرنګوالي او څومره والي په اړه پوښتني ځي او راځي.

که هغه د ټولیز پرمختګ د رامنځتـه کېدو تیوري، د نړۍ پـه کچه بېلابېلو لویو امپراطوریو او امپراطورانو په اړه له پوښتني سره مخ وي.

که هغه د خپلو پرګنو او یا هم پردیو د جګړو او یرغلونو او پکې د مادي او معنوي وړتیاو، ځانګړتیاو، پیاوړتیاو، نوښتونو او نیمګړتیاو، همدارنګه د هر اړخېزو تېریو، تېروتنو، ماتو او را پرزېدو عوامل او لاملونه څېړي.

که هغه پر نړۍ د ګڼو قومونو او ملتونو د اسماني دینونو، وضعي قوانینو، د ژوند څرنګوالي، کلتورونو، هنرونو، راج او رواج، بشپړ ژوند کې د توپیرونو او تر اوسه د وخت پر تېرېدو رامنځته شویو تغیرونو په هکله پوهېدل غواړي.

که هغه د ازادۍ او استقلال ارزښت ته پاملرنه او د هغه پېژندنه غواړي، که هغه د خپلو پرګنو او وړاندېنیو خلکو له ژوند او تجربو ګټه اخلي، که هغه د ملت پالني، ملي غرور او د ملي اتلانو د ویاړونو احساس په ځان کې را ژوندی کول غواړي او پر اتلولیو یې ویاړي، که هغه له خپلو پرګنو ځان خبرول او د هغوی لاره نیول غواړي.

که هغه د پردیو پر وړاندې خپل اصالت پر اثبات رسول غواړي، که هغه نوښتونه رامنځته کول او پر تمدن او ټېکنالوجۍ خپل ملت د نورو سیال جوړول غواړي، نو همدا د خپل ژوند کیسه (تاریخ) یې ورښیي او ترې خبروي یې، د دې هرڅه په اړه دې هغه په دې کیسه کې ټول څه ولولي.

خو دا هله چې تېرو انسانانو دا هرڅه د تاریخ حافظه کې ثبت او پر خپل لاس یې په تاریخ کې خوندي کړي هم وي، ځیني چې کومي د پام وړ پېښي او شخص په اړه وایي تاریخ به دا هم ولیکي، تاریخ به یې په سروزرو لیکي، یاد یې تل پاتي او داسي نور، د تاریخ نوم یې اورېدلی نور نه پوهېږي چې هغه څه دی، څوک پکي لیکي او څوک پکي یاد تل ساتي، لکه تاریخ چې یو د خدای پاک رالېږلی شخص یا یو داسي په نوې ټېکنالوجۍ سمباله ډیجېټل دستګاه وي چې د ده د خوښي او بېځایه تمي سره سم هغه به لیکي، یاد به یې ساتي او... خپله لاس نه خوځوي.

دوی باید سر خلاصي وي چې یو د تاریخ شتون دی او بل یې کښل، موږ رښتیا هم تاریخ لرو او تر ډېرو غوره او ځانګړی تاریخ، خو چې پر خپل لاس یې و هم لیکو او ثبت یې کړو همغه هم تاریخ دی، هم به تاریخ لیکلي او یاد به یې ساتلي وي، له دې پر ته د نیمګړي تاریخ رول هم همغسي نیمګړی وي، په خواشینۍ سره چې زموږ تاریخ د خورا ارزښتناکو ځانګړنو سربېره له همدې جملې او نیمه خوا دی، دا نیمه یې که ټوله ونه وایو زیاته برخه یې اټکلونه او له یو او بل درک څخه اخیستني دي چې تېروتني او نیمګړتیاوي هم ورکې په تېر پسي بیاځل تکرارشوې او پر هیڅ علمي تحلیل ولاړ نه وي.

تاریخ خو د تېر/پروني مادي، شعوري او سلېقیي توپیرونو رامنځته کړیو پېښو کره علمي شننه او بشپړه سپړنه ده او له همدې څخه ګرېږي، خو تېر د پېړیو او پوړیو ور هاخوا په مانا نه، بلکې په شته ثانیه کې وړاندې ثانیه هم ناتمام تاریخ بلل شوی.

خو زموږ تاریخ لکه د منځنیو پېړیو زمان، مکان شخص او پېښې په څلورو فکتورونو کې لاهماغسې نغښتې پاتې دی، په را وروسته د وېښتیا، اوښتون او بدلون مرحلو کې یې هیڅ تحلیل او بیان نه دی شوی، چې ټولنیز، سیاسي، نظامي، اقتصادي حالات او د تېرو پېرګنو د ژوند د پام وړ اړخونه یې و لیکي، پر ټولنیزو پوړونو او طبقاتو لکه عالمانو، روحانیونو، پوهمن کدر، مجاهدېنو، سیاسیونو، نظامیانو او... همدا رنګه پر زړو، ځوانانو او نوي کول باندې وغږېږي، د لړکیو خپلمنځي اړیکو، ګډ ژوند او ټولیز وجدان ته تربسې انعکاس ور کړي، پر لرغونو ابداتو چې له نورو سره د فرهنګي اړیکو، د تاریخ د کره سند او د سېمو د هویت او وضعیت، د ټولني پر طبقاتو او ټولنیز ژوند پوهېدلو یو مهم او ارزښتمن رکن دی رڼاواچوي او... اوس موږ د دې ټولو پر اړه له هر اړخېزو تاریخي ستونزو سره مخ او له یو داسې درکه بې برخې یو چې دغه هر څه ښه کره ترې راپیدا کړو.

د نومیالیو او ملي اتلانو پېژندنه (اتل پوهنه) هم چې محور یې په ټولنپوهنه کې محراق ګڼل کېدونکی شخص دی د تاریخ یوه مهمه څانګه ده، که څه هم تیوري او نظریه یې لا بشپړه نه ده خو په معاصر تاریخ کې ارتهپر کتېکې او عملي ساحه لري، یوه د پام وړ برخه یې جوړوي او د یو ملت په ویاړونو، وېښتابه او ملي غرور کې کم ساري وي.

زموږ هېواد چې بشپړ اسلامي دی اسلامي تاریخ یې نږدې څه باندې ۱۳ نیمې پېړۍ مخینه لري او له هغه مهاله را پیلېږي چې احنف بن قیس رضی الله عنه پر ۶۳۹ زېږدیز کال د فارس باچا یزد ګرد پسې خراسان ته راغی او هرات یې ونېوه، دلته اوږد جهادي پیر یوه دېني او له بې ساري سترو ویاړونو او اتلولیو مالامال موضوع ده چې په تاریخ کې یې د غوره ثبوت په پار اړېنه ده ژوره وڅېړل شي، ټولنیز پوړونه یې فرد فرد واخېستل شي او د پېښو کره نېټې ورکې په ښه شي.

د لومړي اسلامي تمدن له نوښتونو را نېولې د افغانانو تر اوسنیو سرښندنو اسلامي تاریخ ډېرې پېښې را نغاړلې دي، که له نورو راتېر او یواځې زموږ د یوېشتمې پېړۍ، نږدې او په کور دننه بېلګه یې را واخلو، نو په دې وروستیو کې مرحوم ملا محمد عمر مجاهد، د هغه په مشرۍ راپورته شوي طالبان، په غورځنګي خواریو یې را زرغون شوې اسلامي امارت او د هغه دوه نیمې لسیزې له اتلولیو او قربانیو ډک شالید یادولای شو.

دا یوه خورا ستره پېښه وه چې له نن څخه دوه نیمې لسیزې مخکې په ۱۴۱۵ هجري کال رامنځته شوه او ورسره پخواني اسلامي تمدن او خلافتونو ته د افغان ولس او یو بشپړ داسې ملت ور ګرځېدلو هیلې را و ټوکېدې چې د شوروي او له هغه را وروسته بیا د واک د وږیو له لوري یې یو نیم میلیون ارواوې له لاسه ور کړې وې.

د یاد غورځنګ پېښه هم (چې د ګڼو نورو جزوي هغو ټولګه ده) نه له اتلولیو او سرښېندنو پرته را منځته شوې وه او نه یې پنځولې هیلې پر مفته پوره کېدای شوې، دا د هغه لپاره یو ستر أزمون و، چې پر یو بېلګه اېز اسلامي حکومت او نظام اوښتو وروسته د امریکا پر مشرۍ د ناټوغړو پر ګډون ۴۸ هېوادونو، د هغو کورنیو لاسپوڅو او د ډالر او ریال نغدونکو جهادیانو پر صلیبي اشر یېرته ونړول شو. د اسلام ضد د هغه په تاریخ کې د دغې خورا سترې دوهمې اتحادیې پر وړاندې اوږده او خونړۍ جګړه کې یې ٪۸۰ سلنه غړي له منځه لاړل، شهیدان، معیوب، أسیران او یاهم منفک شول.

د مشر ملاصاحب په اړه د یوه امریکایي هغه خبره ډېره مشهوره او د طالبانو له مشره ترکشره او د غورځنګ ټول بهیر یې یوه لنډه، ساده خو غوره بېلګه ده چې وایي ((موږ به په خپل تاریخ کې پر دې ویاړو چې ملاعمر مو داسې سیال درلودلی چې عسکر یې له ځانه بمونه تړي، که زه افغان وای له هغه څخه د دین او ملت بېل والي سربېره به مې پیروي کړې وه))، ګڼې نوري دا ډول پېښې او د هغو د لالتونه چې تر ټولو سر سخته دښمن یې لا هم د خپل تاریخ ویاړ ګڼي زموږ په تاریخ کې خو ډېر لوړ ځای لري او پر سروزرو د ثبتولو وړ دي.

خبره پر دې را لنډوم چې د طالبانو د غورځنګ بهیر زموږ د تاریخ یوه نوې صبغه او رنګ دی، دغه بهیر چې بشپړ پر یوه حیاتي دیني موضوع (جهاد) ولاړ دی تاریخ یې له کره نېټو سره باید ثبت شي، له بل لوري چې مو د تاریخ د مهمې برخې په توګه د اتل پوهنې یادونه وکړه، محور یې د طالبانو په غورځنګ او د هغه بهیر کې چې د ټولپوهنې پر محراق اشخاصو راڅرخي په پراخه کچه موندل کېږي، او بیا څرنګه چې تاریخ د انسان د ژوند کېسه ده، که ورکې د طالبانو د غورځنګ د بهیر پېښو په نوي هر اړخیز مېتود او اسلوب ثبتولو سربېره د یاد بهیر ښکېلو اشخاصو او نورو د ژوند سوانح او اړوندې بېلابېلې کېسې رامنځته کړل شي د تاریخ ټولې تشې مو پوره او پر ښه توګه ډکولای شي، ځکه سوانح او کېسې پر فرد فرد تطبیق او تر ډېره پر کره نېټو ولاړ وي.

د سوانحو او ژوند لیکونو ښکاره موخه که یواځې د اړوند شخص یاد ژوندې ساتل وي، خو اشخاصو، اوضاعو، پیر او زمان او د هغوی اړوند پېښو او واقعیتونو ته پر کتو د تاریخ د یو مهم اړخ په توګه ډېرې نورې ګټې هم لري، هغو ته پر پام که زموږ علمي کدر، پوهمن پوړ او قلموال ځوانان همت وکړي، نو خپل تاریخ ته بې ساري کار کولای شي چې د اشغال او د هغوی د مزدورو او کرایي قاتلانو د تېریو او وحشتونو ښکار شویو وګړو که لوی دي که واړه ژوند یې په پېیلو او ناپېیلو کېسو کې وڅېړي.

د اشغال پر وړاندې د دوی پر رول وغږېږي، له تېر کړي مظلومیت، پرې ترسره شویو وحشتونو، ور اوښتو زیانونو، ورته رسېدلو ځورونو څخه یې پرده پورته کړي، ترې لوټل شوي پت او عزت، چور شویو توکو او مالونو، اخېستل شویو اولادونو، د کور غړو، خپلوانو، وېجاړ او پر اور لولپه شویو کلیو، کورونو، مسجدونو، مدرسو، مکتبونو، کلینېکونو، بازارونو، بسته ښارګوټو او ورته د دوی د ناوسۍ کېسه یې وکړي...

خو له دې سره همهال یې بیا هم د یو افغان وګړي په توګه ځواکمن هوډ، د غره استقامت، اسلامیت او افغانیت ته ټېنګه ژمنتیا، وروستو پاتې غریبانه، له کړاوه ډک او له رنګېنو تش ژوند ترخې شېبې په رښتوني ښه داسې انځور کړي چې د ځوانانو احساس را پاروي، ضمېرونه وېښوي، وجدانونه لړزوي او تر زړونو پورې ووري وزي.

له دوی پرته د اشغال پر وړاندې عملاً جګړه کونکو مجاهدېنو سوانح پر ځانګړي ډول و کاږي چې له پیدا ایښته اخېستې لومړنۍ، منځنۍ او لوړې دېني او عصري زد کړې، علمي او اصلاحي مستوی، د تدریس او علمي بوختیا بهیر، د جهاد پیل او بېلابېلې مرحلې، د وسلوالي، تبلیغاتي، سیاسي او... مبارزو مخینه او ورکې رول، جګړه اېزه او

سیاسي وړتیا، تجربې او ځانګړتیا، سیاسي بصیرت او محاربوي ذکاوت، د هېواد او سیمې په سطحه جهادي حماسې او د پام وړ عملیاتو کې ګډون، خدمتونه او ترسره کړې دندې، د جهادي مشرانو، مجاهدینو او مخالفینو له نظره رول یې.

همدارنګه شخصي او ذاتي ځانګړني، ایثار، فداکاری، شهامت، مېړانه، اخلاص، توکل، صبر، استقامت، زغم او...، ټپونه، ځخمونه، تکلیفونه، ستړې ستوماني، هجرتونه او جلا وطني، ساده ژوند، اسارتونه، ځاني او مالي قرباني، شخصیت، د ژوند خوږې ترخې، د خپلوانو او ملګرو خاطرې، د شهادت لنډه کیسه، کرامتونه، پر شهادت یې رامنځته شوې خلا، شاته پرېښودې کورنۍ او تر وسې د دې ټولو نېټې او د نه شتون په صورت کې مهمې نېټې یې را ونغاړي، ربښتونو عالمانو، مشائخو او روحانیونو، د پخواني جهاد مشرانو، لیکوالانو، پوهانو، سیاستوالو او داسې نورو چې اشغال او د هغه اغېز یې نه وي منلی هم د ټولني د طبقاتو په توګه ډېر څه ولیکي او په هغې کې یې رول ثابت کړي.

ځیني وخت یو لیکوال له چا د شهید او نورو مرحومینو د ژوند اړوند مالوماتونه را ټولوي، خو هغوی ته په دې اړه ځیني اندېښنې او پوښتني را ولاړېږي چې اوضاعو او چاپېریال ته پر کتو څه یې پر ځای او ډېري یې بېځایه هم وي، نو لیکوال د سوانحو راټولولو پر مهال لومړی باید د چاپېریال او شرائطو په پام کې نېولو سره د هغوی پوښتني او اندېښنې ځواب او ډاډ ورکړي او بیا په سوانحو کې داسې څه را نه وړي چې ترې چا ته ستونزه جوړېدای شي، یا یې پر کنایاتو او د لنډون پر ټکو یاد کړي.

که پر دې ډول د دوی له ژونده هر اړخیزه ربښتونې کیسه وشي او پر واقعي بڼه انځور شي، د اشغال او د هغه د وحشتونو توجېه کونکو ګوډاګیانو د هغو ادعاو سپیناوی به هم شوی وي چې دوی پرې پر ولسي خلکو ترسره کړې بریدونه او وحشتونه توجېه کوي، د مجاهدینو پر وړاندې د تبلیغاتي هڅو په شکل یې کوي، د ولسونو پر سترګو کې پرې ځان ته برأت ورکوي، یا هم یې غلام د بادار د رضایت او باور راخپلولو په موخه ترسره کوي او...او یقیناً چې زموږ د وخت او نږدې مازي د افغانانو د ژوند کیسه به پرې ربښتونې، کره او زړه راښکونکې، تاریخ به یې بشپړ، د وخت پر غوښتنو پوره او په فن کې معیاري شوی وي ان شاءالله.

په تېر کې زموږ د تاریخ د نیمګړتیا یو لامل د وخت توپیر او د مهالنیو غوښتنو تغییر هم ښایي، خو له ښې مرغې د طالبانو فرهنګي برخي په څلورو ژبو د شپږو میاشتنیو مجلو تر څنګ چې له کلونو راسي د بېلابېلو اوضاعو اړوند مطالب خپروي په دې وروستیو کې ځیني ټولګې هم چاپ کړې چې زموږ د تاریخ یو نوي مېتود او اسلوب رامنځته کولو ته لاره هوارولای شي.

داسې مېتود چې پېښې او واقعیتونه یکې پوره څېړلي له کره نېټو سره په ربښتونې بڼه انځور کړي، د هغوی او تشو افواهاتو او تبلیغاتو ترمنځ تفکیک یکي شوی وي، له پېښو او واقعیتونو د هېواد او وګړو شته وضعیت په تناظر کې کیسه کوي چې د وګړو او اشخاصو پر هویتونو او هم د هېواد پر ګڼو وضعیتونو دلالت وکړي، مالوماتونه د څېړنو له پلوه داسې کره وړاندې کړي چې له لویو پېښو سره د هغو جزوي اړخونه هم یو له بله پر خپلو ځانګړنو جلا او ځانته وښیي او په ټوله کې د وخت پر غوښتنو بشپړ پوره وي.

# زما هم عصر ملګري په کومه روان دي؟

ډېری ځوانان مو یوازې د سیاسي فاحشو د دسیسو او څو روپۍ معاش او موقتي دولتي پوستونو او طفلانه اکټونو ښکار شوي .

دوی خوشاله وي چې یو دفتر کې کېني، مګ/غټه پیاله کې کافي/چای وڅښي، له خپل کمپیوټر او مېز سره عکس واخلي، یو نیم بهرنیو هېوادونو ته سفر وکړي، کافي شاپ کې ماښام تېر کړي، برنډ پتلون/کمیس/دریشي- واغوندي او ښوی ښوی وګرځي. نور یې بلا ورپسې چې حکومت هر څه کوي ښه کوي. که بمبار کیږي، که عام وژنې کیږي، که خلک غولول کیږي، که تقلب کاري او فساد کیږي او که سلې نورې ناخوالې راټوکیږي دوی ته بس دغه خپلې طفلانه ورځنۍ چارې مهمې دي.

دا نو فکري بلوغ ندی. که ربښتیا ووایم یو وخت زه هم ورته خوشالېدم خو نور دا هر څه ستړي کوونکي او بې خونده دي. دا ادعا هم نه کوم چې فکري بلوغ ته ورسېدم یا کوم نابغه یم. نه. خو دا خبره باید په ذهن کې وساتو چې:

اگر در حلقه مردان نمی‌آیی ز نامردی

چو حلقه بر در مردان برون می‌باش و در می‌زن

-مولانا

بهر نان بر در ارباب نعیم دنیا

مرو ای مرد که این طایفه نامردانند..

-شهریار

ای چرخ بسی لیل و نهار آوردی

گه فصل خزان و گه بهار آوردی

مردان جهان را همه بردی به زمین

نامردان را بروی کار آوردی

-ابوسعید ابوالخیر

قانع از دنیا به رنگ و بو شدن

سخت نامردانه می‌دانیم ما...

-صائب تبریزی

# د شهید ملا غلام نبي جهادیار ژوند ته کتنه

عبدالستار سعید

## پیژندنه

ملا غلام نبي جهادیار د کاکړ اکا زوی د زابل ولایت د ارغنداب ولسوالۍ د فقیرزو د سیمې د مارمولک د کلي اوسیدونکی په ۱۳۵۳ هـ ش کال کې په یوه دینداره کورنۍ کې دنیا ته راغلی و.

نوموړي په خپل کلي او مسجد کې له ابتدائي درس ویلو وروسته په همدې سیمه کې د پرو کلي په درس کې سبقان شروع کړل. له څه وخت درس ویلو وروسته څرنګه چې هغه وخت لومړی د کمونیستانو پر خلاف جهاد روان و او وروسته بیا د داخلي ټوپکیانو له امله په هیواد کې د دننه د تعلیم زمینه برابره نه وه، نوموړی د دیني علومو د حصول په تلاش پاکستان ته لاړ او د بلوچستان ایالت په لورلایي سیمه کې یې د دیني علومو زده کړې ته دوام ورکړ.

په بلوچستان کې له څه مودې درس ویلو وروسته نوموړی بیرته خپل اصلي ټاټوبي ته را وګرځید او د زابل ولایت د مرکز کلات مربوط د ملخانو د کلي په مدرسه کې یې زده کړې کولې چې په افغانستان کې د شر او فساد پر خلاف د طالبانو اسلامي خوځښت پیل شو .

## له اسلامي تحریک سره پیوستون

ملا غلام نبي جهادیار ۱۹ کلن طالب و، د زابل په کلات کې یې سبقونه ویل چې د طالبانو اسلامي تحریک پیل شو. نوموړي د ډیرو نورو طالبان غونډې خپل کتابونه کت کړل او د عام شوي فساد او هرج و مرج د محو کولو په غرض د طالبانو په اسلامي تحریک کې داخل شو. په پیل کې د زابل د دایچوپان ولسوالۍ د اوسیدونکي شهید ملا عبدالخالق آخند په ډلګۍ کې په جهادي خدمت بوخت و. هغه وخت چې جهادي خطوط د کابل ښار په لمنو د میدان ښار په غرنیو سیمو کې و ملا غلام نبي جهادیار ډیر وخت جهادي وظیفه همدلته ترسره کوله.

د میدان ښار په غرنۍ سیمه کې د مجاهدینو یوه مهمه دفاعي پوسته وه چې همیشه به د دښمن تر برید لاندې وه. د دې پوستې مسؤلیت په غاړه اخیستل خورا سخت و. ملا غلام نبي جهادیار چې یو مخلص مجاهد و او همیشه به یې تر ټولو سخت او د قربانۍ ځای ته ځان رساوه له کشر- توب سره سره یې د دې سنګر د ساتلو مسؤلیت په غاړه واخیست. نوموړي خپل د مدرسې څو تنه همځولي طالبان چې عمرونه یې تر شل کلونو کم و ورسره ملګري کړل او په همدې سنګر کې یې واړول. جهادیار د عمر له کموالي سره سره په خورا متانت او لوړ عزم همدا سنګر تر پایه وساته او دښمن ونه توانید چې له هر څومره سختو بریدونو سره سره یې تر‌ې ونیسي- له همدې کارنامې سره نوموړی د یوه غیرتمن او با عزمه مجاهد په حیث وپیژندل شو نو ځکه د مستقلې ډلګۍ د مشر په حیث وټاکل شو او ډیر ژر یې د مجاهدینو شمیر زیات او د اسلامي تحریک د وتلیو او منلیو جهادي قوماندانانو په ډله کې حساب شو .

## له ګمنامۍ تر قوماندانۍ

ملا غلام نبي جهادیار له صورته کوچنی او له رنګه په اصطلاح یو خړ پړ طالب و. خو په دې طالب کې الله تعالی یو داسې جوهر ایښی و چې نوموړی یې په ډېرو زړونو کې ځای کړ. جهادیار له في سبیل الله جهاد سره مخلصانه شوق او د قربانۍ او ایثار داسې روحیه درلوده چې هیڅکله یې ځان نه سپماوه.

نوموړي د ژوند ډېر وخت د اول خط په سنګرونو کې تېراوه. حتی داسې پېښې شوي چې مسلسل دوه کاله یې په لومړۍ کرښه کې وخت تېر کړي وي اوکور ته نه دی ستون شوی. نوموړي د اسلامي تحریک په ټولو مهمو جنګونو کې شرکت کړی، د کابل د فتحې او د افغانستان د شمالي ولایاتو د سترې فتحې په عملیاتو کې برخوال و. د کابل په شمال، غوربند، اندراب، کندز، تخار، بلخ، بامیانو او ګڼو نورو سیمو کې یې جهادي وظایف ترسره کړي دي. په رسمي تشکیل کې لومړی د کابل د باغ داود د فرقې قوماندان او وروسته د پکتیا د دریم نمبر قول اردو د قوماندان په حیث وټاکل شو چې ډېره موده یې دغه وظیفه ترسره کړه. شهید جهاد یار ډېره موده د کابل په شمال کې د زاړه سرک د دفاعي خط عمومي مسؤل هم پاته شوی. د نوموړي ملګری ملا محمدزی آخند کیسه کوي چې د همدې مسؤلیت په وخت کله چې نوموړی ټپي شوی و او د کابل په څلور سوه بستریز روغتون کې تر علاج لاندې دې، د مسعود کسانو لوی یرغل وکړ، خط مات شو او طالبانو د کابل پر خوا د خیرخانې تر کوتل پورې شاتګ وکړ. ملا جهادیار چې کله له دې واقعې خبر شو، په داسې حال کې له روغتون څخه راووت چې جامې یې وینو لړلې وې، په همدې حال کې یې ځان د خیرخانې کوتل ورساوه، مجاهدین یې منظم کړل او په دښمن یې ځوابي برید وکړ. تر دې چې دښمن بیرته شکست وخوړ او تعرض یې په شا وتمبېده.

## ایثار او قرباني

دشهید جهادیار له غوره صفاتو یو هم د نوموړي ایثار و. جهادي ملګري یې وایي چې هیڅکله یې نه په یادیږي چې د پرمختګ او تعرض په وخت کې له ده کوم ملګری مخکې شوی وي. نوموړی تر ټولو مخکې روان و. که په چیرې دښمن ماینونه ایښي او ځمکه به خطرناکه و، بیا به هم تر مخ و او ملګرو ته به یې ویل زما په پلونو راځئ. د نوموړي فداکارۍ، استقامت او لوړ عزم ته په کتو د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا نوموړي همیشه هغو ځایونو ته لیږل کیده چېرته به چې جنګ سخت او وخت تیرول مشکل وو. ملا جهادیار په لنډ جهادي ژوند کې څو ځله ټپي شوی و، چې له صحت یابۍ وروسته به بیرته جهادي سنګر ته ستنېده. د هغه له جهاد سره فطري شوق و. په جهاد کې کاریدونکې تقریبا ټولې وسلې یې په خپل شوق داسې زده کړې وې چې له خفیفه وسلې نیولې بیا تر دوه میلې او ټانګ پورې د اکثرو وسلو پوره ماهر او مسلکي و او د جګړې په مهال یې هم مهاله ترې استفاده کوله.

## د کندهار وروستۍ جګړه

کله چې امریکایانو په افغانستان یرغل کاوه، ملا غلام نبي جهادیار د بامیانو په ولایت کې مسؤلیت درلود. د یرغل په لومړیو اونیو چې د اسلامي امارت مجاهدینو مقاومت کاوه نوموړي هم د الله تعالی په نصرت د دغه ولایت کلکه دفاع وکړه او د کریم خلیلي په مشرۍ د حزب وحدت کسانو ته یې اجازه ورنکړه چې د امریکایي بمبار تر سیوري لاندې د دې ولایت مرکز او نورې سیمې ونیسي. خو کله چې د اسلامي امارت مجاهدینو له ښارونو د وتلو اراده وکړه، مزار شریف، هرات او نور ښارونه یو په بل پسې تخلیه شول. ملا جهادیار هم له بامیانو میدان وردګ ته راغی، له هغه ځایه پکتیا، پکتیکا ، غزني او بیا د زابل کلات ته راغی. دغه وخت چې یوازې کندهار او شاوخوا سیمې د مجاهدین تر سلطې لاندې پاته وې، نوموړی له خپلو ملګرو سره کندهار ته لاړ، تر څو د امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد تر مستقیمي قوماندې لاندې د دغه ښار دفاع وکړي.

دغه وخت د امریکایي یرغل زور او د جګړې قوت په کندهار را ټول و. د ایران لخوا د عبدالرحمن جان په مشرۍ ټوپکیانو د ریګونو له لارې راغلل او د مارچې

ولسوالي يې ونيوله، د ملا صاحب په امر ملا جهاديار او ځينې نور مجاهدينو پسې تشکيل وکړ، په ټوپکيانو يې تندريز بريد وکړ، لسګونه کسان يې ترې ووژل او د ولسوالۍ واک يې بيرته خپل کړ .

له هلمنده چې راستون شو، دغه وخت ګل اغا شيرزی له ارغسانه راکوز شوی او د تخته پل سيمې ته را رسيدلی و. ملا صاحب يو ځل بيا په جهاد يار غږ وکړ، د جهاديار په مشرۍ مجاهدينو تخته پُل ته تشکيل وکړ، په ګل اغا يې ناڅاپي حمله وکړه، څه کسان يې ترې ووژل او نور يې محاصره شول، حتی په مخابرو کې داسې چيغې شوې چې د ګل اغا کسانو امريکايانو ته د عاجل اقدام خواست کاوه تر څو ونه نيول شي. په همدې وخت امريکايي الوتکو سخت بمبار پيل کړ، په بمبار کې د شهيد جهاد يار موټر هم ولګيد او نوموړی له څو نورو ملګرو سره د تخته ولسوالۍ د تکيې په سيمه کې په شهادت ورسيد.

په دې ډول له دې سيمه طالبانو شاتګ وکړ او د کندهار تر تور کوتل پورې سيمه د ګل اغا شيرزي او امريکايانو لاس ته ولويد. د شهيد جهاديار جسد چې د جګړې په سيمه کې پاته و، د سيمې د خلکو لخوا د لوی ده په سيمه کې خاورو ته وسپارل شو. خو څو ورځې وروسته يې خپلوان او ملګري ورغلل، دهغه جسد يې را ويوست او د زابل په ارغنداب ولسوالۍ کې د زيارت په سيمه کې يې د هغې مدرسې سره نږدې دفن کړ چې شهيد جهاديار جوړه کړې وه .

په دې ډول هغه ځوانکی طالب قوماندان د شهادت په سفر لاړ چې لنډ ژوند يې له تعلم، جهاد او ديندارۍ څخه تشکيل شوی و. د شهيد جهاديار جبهه د ده له شهادت وروسته د نوموړي مجاهد ورور رهبري کره او وروسته يې پر ځای د شهيد قاري سيف الله په شان د لوړ عزم او همت لرونکو مجاهدينو د امريکايي يرغل په وړاندې جهاد کې ونډه واخيسته، چې تر اوسه يې جهادي خدمتونه جريان لري.

الله تعالی دې په شهيد جهاديار او ټولو شهيدانو رحمتونه نازل او د جنت لوړ انعامات ورنصيب کړي .

## خبره د زور ده! زمريالی م

په کور دننه د يوې داسې قوت له منځه وړل چې په هر ځای کې راپيدا کېدلی شي او بريد کولی شي حماقت دی. له غره راکټ او پيکا مرمۍ ورولي، په درو کې يې مورچلونه نيولي، په کنډک/ ټولي/ حوزه/ پوسته/ دروازه/ مېلمستون/ کاروان/ موټر او هر ځای ته درپسې درځي حتی ځان درباندې وژني خو تا وژني. حتا ستا په رنګ او جامه کې هره ګړۍ پر تا بريد کوي. هره ورځ دې پکو کوي او درنه ورک دی.

طالبانو دا اتلس کاله ښه په خرپ جګړه وکړه او دريغ يې بدل نشو. هغوی جګړه وکړه او امريکايان يې ستړي او تاواني کړل. مجبور شول ورسره د مذاکرې له لارې مخته ولاړ شي او يوه معامله وکړي چې سرخوږی يې راکم شي.

پدې لړ کې هره خبره زور وکړه او همدا زور دی چې اوس يې په پام کې نيولو سره هر څه کيږي. څه نه و چې ونشول او څه ندي چې نه کيږي خو جګړهه لاهم په شدت روان ده اوګټونکی بايلونکی يی له شک پرته هغه څوک دی چې امريکا يې دخپل ميز شاته کينولي او دوتلو توافقنامې امضا کولو ته يې را بولي .

امريکايان سخت پکو شوي. په جګړه کې د وژل شويو، معلول شويو او رواني اړخه ځپل شويو امريکايي سرتېرو شمېر هېښوونکی دی. امريکايان په کوردننه غالمغال کوي چې ژر بايد افغانستان نه ووځو او په ممکنه سلامتۍ ووځو چې ټول سياستوال يې هم لدې جګړې د وتلو لارې لټوي او چې افغانستان ياد شي وايي لدې اوږدې، ستړي کوونکې، له مصارفو ډکې او بې مانا جګړې وځو. دا نو يوازې امريکا نده چې دا خبره کوي. تاريخ تکراريږي .

اوس نو، خبره زور وکړه او خبره به همدا زور کوي. فرق نه کوي چې په کوم قالب کې خبرې او مذاکرات کيږي خو تصميم به زور نيسي. داشرف اوګلمرجان حکومت زور له امريکايانو پرته څه دی؟ په داسې حال کې چې هغوی هم اوس طالبان بر کېنولي او مېږۍ ورسره پوکوي بيا يې خوري .

لنډه دا چې، په جيو جيو او پلمو تراشلو نه جګړې ګټل کيږي نه ډيالوګ؛ خبره د زور او همدغه زور دی چې اخري تصميم به نيسي. نور هسې تشريفاتي کلمات دي چې کارول کيږي که دزور خبره دچا زړه ته نه لويږي نو لنډ مثال يې دانس حقاني اوملګرو تبادله اوخلاصون ده چې په زور اوزور او بيا زور څومره سرې ليکي اوکرښې ماتي اودړي وړي کړي.

والسلام

# بابري مسجد!

## دهند فاشست رژیم او مسلمانان

ارمان

دروان «۲۰۱۹ »زکال دنومبر پـه «۹»مـه سـهار دهندوسـتان پرافق د لمر څـرک لـه ځـان سره د دوه مختلفوادیـانوپیروانولره دوه جلا،جـلا پیغامونـه راوړل، یوتـه دخوشـالی پیغـام، اوبـل تـه دغـم اوسیتم څخه ډک پیغام

پـه دغـه سهارسـیکانوپر دې خوشـالې لمانځلـه چـې ورتـه دګاونډي پاکستان لخواد دوی دپیشوا «ګرونانک» ترمولد او مـدفن دواړو پورې په اسانه او لنډه دتلو یوه نوې لارپرانیستل کیده

اودمسلمانانولپاره دغه سهارله دې پلـوه بدمرغـه اوځـورونکی وچې دهندوستان سترې محکمې دټولو تـاریخي واقعیتونواوښـکاره شواهدو څخه په انکاردبابري مسـجد پرځـای درام منـدرلوجوړولو حکم ورکړ اودمسجد پـه اړه یـې دمسـلمانانو دلایـل او شـواهد پـه خورا تعصب سره ردکړل

دنـومبر پـه« ۹مـه» هندوسـتان کـې دمیشـت سـیکانو لپـاره دپاکستان دصدر اعظم لخـوا دهغـوی دمـذهبي پیشـوا [ګرونانـک] ترمولود او مدفن پورې دویزې او فیس پرتـه دسـفر اجـازه ورکـړل شوه

خو په همدي یاده نیټه دهندوستان بد نصـیبه مسـلمانانوڅخه خپلـه تـاریخي ورثـه( بـابري مسـجد) واخیسـتل شـو اوهندوانوتـه وسپارل شـو، څـو ترپایـه یـې ونـړوي اوبیـا پـرې دخپلـو مشرـکانه عقایدواو کافرانه مراسمو سره سم درام مندروداني جوړه کړي ....

هـو!ډیر افسـوس او بیـا هـم افسـوس دمسـلمانانو پـه حـال! داسـلامي هیـوادو زعـماوو او واکمنـو پـردې غلامانـه چوپیتـاچې دمسلمانانو سره دتعصب او ظلم نه ډکه رویه باندې یې سـترګې پټـې کړې اودمسلمانانو مقدسات پایمالیږي دوی ورته پـه خجلـو سـترګو ګوري او نړۍ کې دمسلمانانو داحساساتو او جذباتو پروا نلري

هندوستان څخه دانګریزانو د وتو وروسته چې کله یومتحد هندوستان پر دوه جلا هیوادونو« پاکسـتان اوهندوسـتان» وویشـل شو، هندوستان کې «مهاتماګاندي اودکانګرس نوروړهبرانوچې پکې د مولاحسین احمد مدني اومولانا ابو الکلام ازاد پشـان بیـدار مغـزه اسلامي رهبران هم شامل وو» هندوستان لپاره یو داسې اساسي قانون تدوین کړ، چې په هیڅ دین پورې یې تړاو نه درلود، اونه دکوم دین دلاربنوونواوارزښتونوسره یې ټکـر و، پرتـه د دیـن اونسـل دتمیزنـه هندوستان کې دشته ټولو ادیـانو دپیروانـو دسر،مـال، ابـرو اودینـي ارزښـتونوڅخه ددفـاع او سـاتنې پـه ژمنـه اوهـوډیې ټولـو هندوستانیانوته دا باور ورکړ چې هندوستان کې دشـته ټولـو ادیـانو دپیراوانو حقوق به پکې خوندي وي او ورته هـیڅ قسـم ګـواښ یـا خطر به نه وي پیښ ، ټول هندوستاني وګړي به سره مسـاوي حقـوق

لري، په همدي نيت اوعزم هندوستان کې دلوی شمير علماوو په غوښتنه مسلمانان پاته شول او پاکستان ته کډه نشول

خو د وخت په تيريدو سره دکانگرس اومهاتما گاندي په وړاندې متعصب او توندروي هندوان راپورته شول،اوداناره يې پورته کړه چې «هندوستان يواځي دهندوانو دی » اود «دمسلمانانو ندی» په دې دليل چې يو خو دهندوستان دتقسيم پرمهال مسلمانانو لپاره «پاکستان» د دوه جلا نظريو «چې مسلمانان او هندوان يوځای ژوندنشي کولی» په اساس جلا هيواد جوړ شو،بل نړۍ کې دمسلمانانو لپاره نور هم گڼ هيوادونه شته دي، مسلمانان کولی شي هلته ورشي اوميشت شي او هرچې هندوان اويا سيکان دي هغوی دهندوستان پرته بل هيواد نلري، نو هندوستان کې يواځي حق هم د دوی دی، چې پکې ميشت شي، نورملیتونه بايد تري ووځي، ليکن مهتماگاندي اودهغه دفکرپيروانو ترپوحده ددې دريځ او غوښتنې سره مخالفت وکړ،او د منلوځخه يې انکار وکړ، چې بالاخر هغه( گاندي) دتوندرو هندوانو لخوا ووژل شو، داچې دهغه وروسته هم زياته موده کانگرس په واک کې پاته وو، او دهندوستاني مسلمانانو اکثريت دکانگرس پلويان وو اوهم يې رايې کانگرس ته ورکولې نوپه تيرو څه باندې اويا کلوکې توندوره هندوان ډير ونه وتوانيدل چې دمسلمانانوپرضد پراخ گامونه پورته کړي

البته هغوی تدريجاً خپل پلانونه جوړ او تنظيم کړل، د متعصبو هندوانو يو تنظيم (ارايس ايس) يې جوړکړ، هغه دمسلمانانوپرخلاف يې په ترهگرو فعاليتونولاس پورې کړ، او هم يې په سياسي واک دقبضې لپاره « بې جي پي» گوندغوره کړ، دبې جې پي اکثريت مشرانو او غړوته يې روزنې ورکړې، دهندوستان اوسنی صدارعظم (نريندرمودي) هم د ارايس ايس توندروه غړی دی، بې جي پي او ارايس، ايس په گډه دهندو فاشزم مفکورې ته وده ورکړه، او دټاکنو پرمهال يې دمسلمانانوپخلاف دهندوانو عامه ذهنيتونه هڅول چې هغوی بايد دفاشست هندو رياست جوړولو پخاطر دبې جي پي ترشاه ودريږي، او ترې ملاتړ وکړي،هغه وچې وړاندې دوه ځله واجپايي دبې جې پي گوند لخوا صدراعظم شو ليکن هغه دطبعيت نه يوڅه نرم مزاج و، په دې وجه دهغه په دوره کې مسلمانان کم متضرر شول او دهندوستان اوسنی صدراعظم ( نريندرمودي) چې دبې جي پي غړی دی يو متعصب او دمسلمانانو سرسخت مخالف دی ، بدون شک دده دوره دمسلمانانو لپاره دمختلفو ازمايښتونو او ظلمونوځخه ډکه دوره ده

اوس کله نه چې نريندرمودي دوهم ځل صدراعظم ټاکل شوی، سملاسي په لومړي گام کې يې د«جمو کمشير» ځانگړی قانوني حيثيت ختم کړ، اودهندوستان دنورو ايالتونو او سيموپه څيري کشميرکې هم هندي قوانين نافذکړل، اوس تازه يې د«جموکشمير» نه « لداخ» په نوم سيمه چې چين سره لگيدلې ده جلا اومستقله کړه او دمستقل ايالت درجه يې ورکړه،په دوهم گام کې يې د سيکانو لپاره د«واهگه» بندر سربيره يوه نوې لنډه لار« کرتاپور»پرانيسته زکه چې د«واهگه» لاره سيکانو لپاره ډيره اوږده پريوته، او دانوې لار هغو سيموته لنډه ده چيرته چې په لوی شمير سيکان ميشت دي،هغوی له دې لارې پاکستان کې دخپل پيشوا «کرونانگ» ترمولد( ننکانه) اومدفن «کرتاپور ناروال» پورې ژر رسي، دريم يې دبابري مسجد ۲۸ کلنه قضيه هم دهندوانو لپاره وگټله، چې دهندوستان ستري محکمې دحکم سره سم به هندوان د تاريخي بابري مسجد پرځای خپل مندرجوړوي، يعنې نريندر مودي په لنډه موده کې نه يواځي جمو کشمير دځان کړ، بلکې هغه يې په دوه برخو هم تقسيم کړ، «لداخ» يې ترې جلا کړاوپه هندوستان کې ميشت سيکانو لپاره يې پاکستان کې دهغوی تر زيارتونوپورې نوې لارپرانيسته او دبابري مسجد ځای يې دهندوانو لپاره وگاټه ،ددې وروسته هغه دبې جي پي گوند دمنشور سره سم غواړي دهندوستان اساسي قانون تغيرکړي، زکه دهند موجوده اساسي قانون يواځي دهندوانو تردين پورې خاص قانون ندی، يو سيکولر قانون دی، چې دهندو اکثريت اونورواقليتونو مذهبي حقوقو اوازادۍ ته ژمن دی اوله مخې يې دهر دين او مذهب پيراون حق لري چې په ازاده اودکوم ډار او گواښ پرته خپل ديني اومذهبي ارزښتونه وپالي او ورباندې عمل وکړي،متعصب هندوان دپيل نه پا اساسي قانون نيوکې لري، هغوی غواړي چې اساسي قانون کې دهندوانو ددين سره سم تغيرات راولي دهندوانوپه گټه او دنورو اديانو منونکو خصوصاً دمسلمانانو پخلاف بدلونونه راولي او دهندوانو دديني غوښتنو سره سم يې له سره بيا تدوين کړي چې دا به هند کې دميشت مسلمانانو لپاره يو بل د لويوازمايښتونو او خطرونوځخه ډک ناورين وي

هم دا رازنریندرمودي غواړي چې دهندي تابعیت لړل لـه سره تعریف کړي، چې هدف په مسلمانانو قیودات او بندیزونـه لګول دي، زکه نریندر مودي دمتعصبو هندوانوپشان په دي بـاوردی چـې« هندوستان په اول قدم کې دهندوانو او بیا دسیکانو لپـاره دی»او پـه آندېي «مسلمانان زیاتره دنورو هیوادونوڅخه ورغلي » هم مسلمانان دپاکستان په پلوی تورنوي، اکثروخت متعصب او توندروي هندوان دغويي غوښې خوړو په پلمه مسلمانانو باندې حملې کوي.

پـه اسـام ایالـت کـې همـدا اوس څلورملیونـه مسـلمانان دهندوستاني تابعیت نه محروم کړي دي،اسام دهند پـه شـمال ختیځ کې بنګال سره په پوله پروت هغه ایالت دی چې شاو خوا ۳۰ملیونه وګړي لري، چې ۳۴سلنه یې مسـلمانان دي، اوپـه مسـلمانانو کـې ۷۰ لکه له بنګال څخه ورغلي مهاجرین دي، همـدا راز ۵۰ لکـه بنګـالي هندوان هم په سام کې میشت دي، ، ځایي هندوان اندیښنه لري چې راتلونکي کې به اسام کې دمسلمانانو اقلیت په اکثریـت بـدل شي او دوی ( هندوان ) به اقلیت شي، دهمـدي ډار لـه املـه دهنـدوانو پـه فشار دحکومت لخوا په مسلمانانو بندیز لګول شوی چې هغوی بـه د دوه ماشومانوڅخه زیات نه زیږوي، بل اسام کې میشت مسلمانانو لپاره یې داشرط ایښی دی چې هغوی دي د۱۹۷۱ ز دمـارچ د۲۴ مې نیټې څخه وړاندې اسام کې دخپل شتون اسـناد وړانـدې کـړي کنـه داسام څخه به وشړل شي

لنـډه دا چـې دهندوسـتان مسـلمانان دسـترو ننګونـو سره لاس اوګریـوان دي، او دهندفاشسـت رژیـم کوښـښ کـوي چـې هلتـه دمسلمانانوباندې دژوند کړی تنګه کړي، یواځي دبـابري مسـجد او دکشمیر اشغالولو مسائل ندي چـې مسـلمانان تـرې صرف نظـر شي بلکې ددینه علاوه راتلونکي کـې دبـې جـي پـي اوسـنی حکومـت دمسلمانانو په اړه ډیر بـد عـزایم لـري ،دې لړکـې داسـلامي هیـوادو چارواکي غافل دي، دهندوستاني مسلمانانو لـه سـتونزو اومسـائلو بې پروا دي زموږ دهیواد اجیر رژیم چې دامریکا وروسته دهنـد اجیـر هم دی، هغه دیته خوشال دی چې هندیې دپاکستان په مقابل کې پـه شاتپوي، نوترې ګیله هم نشته، لـیکن عـام ولـس بایـد دهندوسـتاني مسلمانانو سره دهمدردی روحیه ښپانده او بیداره وساتي،هند دومـره مکاردی چې موږ تیربـاسي چـې ګنـي زمـوږ دوسـت او همـدردی، حقیقت دادی چې کافر هیڅکله دمسلمان دوست نشي کیدای کـوم افغانان چې دهند په اړه نرمـه رویـه لـري هغـوی پـه نـاپو هـی او حماقـت کـې مبتلـی دي، هندوسـتان زمـوږ پـه هیـواد دخـارجي یرغلونوملاتړ کړی دی ښکاره یې مثال یې وړاندې دشوروي یرغـل نه دهند ملاتړ او اوس دامریکا په مشری دصـلیبي یرغـل نـه دهنـد وانو لخوا ملاترکول دي چې په هیڅ دلیل توجیه کیدای نه شي.



## پګړۍ دملائکو او وقار نښه ده

پګړۍ تړل د نبي اکرم ﷺ سنت ده، او واضحه ده چې دخیرالبشرﷺ پـه هـر سـنت، عمـل او طریقـه کـې بـې شـماره روښانه ګټې دي.

صرف دې دوه مبـارکو احـادیثو کـې د پګـړۍ فضـلیت وګورئ:

ژباړه: د حضرت عبدالله بن عباس رضی اللـه عنـه څخـه روایت دئ چې نبي کریم ﷺ وفرمایل: چې پګړۍ تړي (ځکـه پګړۍ) حلم (بردباري) زیاتوي.

دحضرت عباده بن صامت رضی الله عنه څخه روایت دی چې نبی کریمﷺ وفرمایل:

ژباړه: (پر تاسو باندی د پګړۍ تړل لازم دی، دا ځکه چې دا د ملائیکو نخښه ده او تاسی د پګړۍ شمله شاته اړوئ.)

---

مستدرک: ٤ جلد، ص ٢١٤ ـ کتاب اللباس.

(رواه ترمذی ومشکوة)

مشکوة شریف: ۳۷۷

# عراق کې لاریونونه

## د چا له لورې او د څه لپاره؟

شهیدزوی

(( موږ واحد هېواد غواړو ))

پدې ورځو کې دعراق دګوډ ګوډ نه راپورته شوې دا ناره نېږدې دهر ژمن عراقي دزړه ناره ده چې دعراق په کوڅو او سړکونو له خولو پورته کېږي.

رښتیا دا ده چې دعراق ولس په یو کوچنۍ جملې او لنډ عبارت هغه څه غوښتي دي چې په ډېرو اوږدو اوږدو عبارتونو کې به یې ځایول ګران وي.

دعراق ولس په خپل هېواد کې دسیاسي بې ثباتۍ له منځه تلو او دواحد هېواد او واحد دولت غوښتونکي دي؛ددې لپاره یې پدې ورځو کې بې سارې مبارزه پیل کړیده؛دهمدې هدف لپاره دوئ هره ورځ له خپلو کورونو لارو کوڅو ته راوځي سخت تشدد سره مخامخ کېږي؛زخمونهویني؛مصیبتونه زغمي،سرونه قربانوي خو شاتګ او له خپلې مدعی تېرېدو ته نه تیارېږي.

ددولت امنیتي ځواکونو او وسله والو جوړو شویو ډلو په لاس د رامنځته شوې بدامنۍ؛ددولت په ټول چوکاټ کې دخورا سترې بدنظمۍ؛اداري فساد؛بې کارۍ؛فقر او اقتصادي بربادۍ پرضد دولس دا حرکت دتېر ۲۰۱۸ م کال په جولای میاشت کې رامنځته شو چې ددې وخت تر رارسېدو په ولسي طوفان بدل شو.

د روان کال تېره اکتوبر میاشت دعراق داوسني تاریخ یوه خونخواره میاشت وه چې پکې دبې رحمه امنیتي ځواکونو او وسلوالو ډلو له لورې له ۲۵۰ زیات لاریون کونکي قتل او له ۵ زره زیات ټپیان شول.

په ۲۰۰۳ م کال کې پرعراق دامریکایي یرغل نه پس دمظلوم عراقي ولس قتل عام روان دی؛یرغلګرو امریکایي او برتانوي فوځیانو ؛شیعه وسله والو ډلو او داعش په ډېرې بې رحمۍ سره ډېر یانې دیونیم ملیون نه زیات بې ګناه انسانان ووژل ؛ پدې قتل عام کې چې کوم کمې پاتې وو هغه اوس لاسپوځی دولت پوره کوي.

دا بې وسلې لاریون کونکې پدې جرم وژل کېږي چې دیو غیر فعال نظام او په اداري فساد کې ډپېبو نه ترسره ډوبو پردولتي لویو منصبونو دقابضو لاسپوځو واکمنانو پرضد یې دحق اواز پورته کړی دی.

ددې کرښو ترلیکلو دا لاریونونه نېږدې ټول عراق ته خپاره شویدي او په پلازمېنې بغداد کې دشپې له لورې ګرځ بندیزوي.

په ۲۰۱۱ م کې چې دعربوبهار په نوم په عربي نړۍ کې دفاسدو دولتونو پرضد ولسونه راپورته شوي وو او دتیونس،مصراو شام ځمکې ددولتونو پرضد دولسي غیض وغضب دښکاره کولو په لویو مرکزونو بدلې شوې وې نو هغه مهال هم دفاسدې اداري پرضد دعراق ولس راپورته شوی او دمثبت بدلون لپاره یې احتجاج پیل کړی و خو دولت ددې احتجاج پرضد دزورنه کار واخست او ژر یې له منځه یوړو.

د ۲۰۱۱م کال نه وروسته هم داداري فساد،دمخ په زیاتېدونکې بې کارۍ او عامه خدماتو ددولتي ادارو دناکامۍ پرضد عراقیانو ډېر لاریونونه ویستي دي او خصوصاً په ګرمۍ کې چې د برېښنا او دڅښاک داوبو بحران رامنځته کېږي نو ولس په ګڼ شمېر کې سړکونو او لارو کوڅو ته راوتلو خو ددولت دزور یا داصلاحاتو دوعدو په رامخې ته کېدو به دکوم سیاسي ځواکمن په لاس یرغمال شو چې په نتیجه کې به له منځه ولاړ.

خو اوسني احتجاجونه ددولت دسخت تشدد سره سره هم موسمي ثابت نه شول او نه هم کوم سیاسي لوبغاړي دخپلو اهدافو لپاره یرغمال کړای شول.

اوسنی احتجاج خوځښت دتېرو کلونو داحتجاجونو نه ډېر بدل دی.

دمخکنو احتجاجونو برعکس دا احتجاج په ناڅاپي ډول رامنځته شو؛خلک دکوم سیاسي مشر یا ګوند په غوښتنه ندي راوتلي او نه هم دګوندونو له لورې درامنځته کېدونکو احتجاجونو په څېر په منظم شکل رامنځته شوی؛ددولت کوم اقتصادي اقدام یې هم سبب ندی بلکې ددولت دټولو ناکامیو پر ضد دا احتجاجونه رامنځته شوي او دعبدالوهاب الساعدي په نوم یو جنرال دخپل منصب نه راکوځول ددې احتجاجونو تېزوالي اصل لامل وګرځېد.

دعبدالوهاب الساعدي دتروریزم دمخنیوي په نوم دجوړې شوې اداري مشرو چې دوه کاله وړاندې دداعش دمنګلو نه دموصل ښار دازادولو له امله یې په عراقي ولس کې ډېر مقبولیت موندلی و او عراقیانو دولس اتل ګڼلو؛عراقیان هغه له فرقه ایزو توپیرونو لوړ یو وطنپال او ملت پال شخص بولي؛دروان کال په ستمبر میاشت کې جنرال ساعدي له خپلې دندې ګوښه کړای شو او ددفاع وزارت ته ولېږل شو چې ددولت له لورې دکوم معقول سبب وړاندې کولو پرته جنرال ساعدي ددولت دا اقدام دخپل ځان او خپل عسکري تاریخ توهین وګڼلو او خپل سخت نارضایت یې ښکاره کړ.

عراقیان وایي دا داهل اقتدار د شخصي ګټو او دخپل اثر او نفوذ دزیاتوالي لپاره یو ناوړه اقدام دی چې هیڅکله هم پر وطن مینو عراقیانو ته دمنلو وړ ندی.

ددولت دې اقدام په ناهیلو عراقیانو کې ناهیلي نوره هم زیاته کړه او دواحد هېواد ناره داوسني ملي حرکت مرکزي ناره وګرځېده.

دعراق په اوسنو لاریون کونکو کې اکثریت دهغو ځوانانو دی کوم چې په ۲۰۰۳ م کې دامریکا دیرغل نه پس راستر شوي او همدې داشغال په زمانه کې یې دشعور ژوند پیل کړیدی؛دوئ دامریکا په لاس دعراق ددولتي ادارو دتباهی شاهدان دي او پدې هم ښه پوه دي چې دصدام ددولت دړنګولو نه پس امریکا دعراق لپاره خورا ناقص اساسي قانون جوړ ؛عراق یې په فرقه ایزو اختلافاتو اخته او داسې نظام یې ورباندې مسلط کړ چې ټول ارکان یې دامریکا لاسپوڅي او دخپلو شخصي ګټو غله وو او دهېواد او ملت دګټو خبرې ورته بې معنی خبرې وې.

اوهمدا نظام دلویدیځ غلامو رسنیو دعراقیانو لپاره دامریکا د دیموکراسۍ تخفه ګڼله.

خو نړۍ ولېدله چې دا دعراق ولس لپاره هغه قاتله دیموکراسي وه چې پکې نېږدې یو نیم ملیون عراقیانو خپل ژوند له لاسه ورکړ؛ په ملیونونو عراقیان کورونو پرېښودو ته اړ شول او عراق پکې لوټي لوټي شو؛فقر او بې کارۍ ټول عراق ونیولو؛بدامني بې حده زیاته خپره شوه؛بې سوادي په هېواد کې عامه شوه؛فرقه ایزې شخړې زیاتې شوې؛هېواد عملاً تجزیه شو؛دولت دفساد منبع وګرځېده او دخلکو ترمنځ یې په تمامه معنی خپل اعتماد او اعتبار له لاسه ورکړ.

عراق دټېلو تولیدونکو هېوادونو کې دلومړۍ کرښې هېواد دی خو دټېلو نه دلاسته راتلونکو پیسو ډېره لویه برخه دڅو فاسدو سیاستوالو جبونو ته ځي او نور ولس دبې ساري فقر سره مخامخ دی؛د ۲۰۰۳م کال نه ترننه دولسي بودیجې نه د ۴۵۰ بلیونه ډالرو په ارزښت پیسې غلا شویدي؛دا ډېرې زیاتې پیسې او ډېره لویه ده چې ټولې بدې اغېزې یې په غریب ولس پریوځي؛ددې غریبو خلکو غریب بچیان دداسې تکلیفونو نه ډک ژوند تېروي چې ورنه دراوتلو لپاره دخپلو سرونو ورکولو ته هم تیار دي.

په عراق کې دروانو لاریونونو یو خصوصیت دا دی چې پدې کې شامل نېږدې ټول خلک یې غریب خلک دي؛بدای خو بډای دي دمتوسط ژوند خلک پکې هم ډېر کم ترسترګو کېږي.

دا حرکت دغریبو خلکو له خامو کورونو او خیمو نه پیل شویدی چې ددوئ دحالاتو نظاره ترډېره لرې کېدای شي خو دلویدیځ رسنیو کې ددوئ لپاره ځای نشته ددوئ د احوالو نه هیڅوک نه شي خبرولای بس ددوئ په اړه که په غربي رسنیو کې څه خپرېږي هغه یواځې همدا یوه خبره ده چې په عراق کې دداعش دماتې نه پس د خلکو ژوند په تېزۍ سره مخ په ښه کېدو دی.

په نړۍ کې تحریکونه او لاریونونه دسیاسي مشرانو او بډایو خلکو په اواز پیل کېږي او بیا ورسره غریبه طبقه یو ځای کېږي

خو دلته خبره برعکس ده ؛دلته غریبو وگړو اواز پورته کړی او بډای؛متوسط او سیاسي مشران ورسره یو ځای کېږي.

لاریونونه چې فراخ شول ډېر پوهنتونونه او ښونځي بند شول او محصلین ددې خوځښت جز وگرځېدل.

دا لاریونونه دمحروم قشر لاریونونه وو نو ځکه دولت زیات ورخطا نه و خو اوس یې دعراق ترټولو مهم شیعه مشر- مقتدی الصدر حمایت اعلان کړ نو ددولت مشکلات یې زیات کړل؛هغه په نجف ښار کې په لاریون کې گډون وکړ او د لومړي وزیر نه یې ژر ترژره داستعفا اود نویو انتخاباتو غوښتنه وکړه.

دولتي امنیتي ځواکونه خو پدې لاریون کونکو مخامخ ډزې کوي او وژني یې ترڅنگ یې دایران په لاس روزل شوې ملېشې هم په پټو مخونو ؛دبامونو له سرونو او پټوځایونو دالاریون کونکي په نښه کوي او وژني یې.

پدې ټول پوهېږي چې دلومړي وزیر عادل عبدالمهدي ترشا ایران او دایران روزل شوې عراقي شیعه ملېشې ولاړې دي د،،حاشید،،په نوم ډله یکې دخاص یادولو وړ ده نو ځکه خو لاریون کونکي ددولت ترڅنگ دملېشو دې ډلو ته هم سخت قهرېدلي دي او دبغداد نه کابو ۳ کیلو متره لرې په میسان ولایت کې لاریون کونکو د ،،عصائب اهل الحق،، په نوم دشیعه ملېشې په مرکزي دفتر برید وکړ چې پرې ددفتر نه ډزې وشوې او ۱۴ مظاهرچیان ووژل شول په مقابل کې یې لاریون کونکو چې دمقتدی الصدر حامیان هم ورسره مل وو ددې ډلې پرځایې مشر- حمله وکړه چې یکې هغه بچ شو خو ورور یې قتل کړای شو.

ویل کېږي چې دلاریون په سبا د پاسداران انقلاب دمشرانو قوماندانانو یوې ډلې دعراق دجاسوسې شبکې او دفوځ دمشرانو سره لیدلي وو چې له هغې وروسته دپاسداران انقلاب مشران په مسلسل ډول دعراق ددولت سره رابطې کوي او ورته مشورې ورکوي.

دعراق شریرو او خونخوارو شیعه ملېشو نه دایران حمایت او دعراق په کورنیو چارو کې دایران لاسوهنو دعراق خلک دومره غصه کړي چې په کربلا کې یې دایران پر قونسلگرۍ حمله وکړه؛پرقونسلگرۍ یې دعراق بېرغ نصب کړ او دایران دمذهبي مشر ایت الله خامنه ای عکس یې څېرې کړ.

دایران او د ایران په لاس جوړوشویو وسلوالو ډلو ته دا حالت ډېر وېرونکی حالت دی چې ایران په عراق کې دداسې حالت سره دمخامخ کېدو هیڅ فکر نه کاوه نو ځکه یې دعراق په کورنیو چارو کې دمداخلت په اړه غور کول اړین نه گڼل.

دعراق په رسنیو بندیز دی ؛

داحتجاج په دوهم ورځ دولت انټرنیټ بند کړ ترڅو دعراق دغریبو خلکو داحتجاجونو او ددولت له لورې پردوئ د کېدونکو ظلمونو نه نړۍ ناخبره پاتې شي؛دولتي خلکو په شخصي- جاموکې دډېرو تلویزوني چینلونو په دفترونو بریدونه کړي او پکې یې ډېر ورانی کړی ددې ترڅنگ دولت دا تبلیغات هم کوي چې لاریون کونکي دبل چا په اشارو راپورته شوي او هرڅه چې روان دي دا د بعث (دصدام حسین گوند )توطیه ده چې له دې لارې بیا ځان واک ته رسول غواړي.

دلومړي وزیر عادل عبدالمهدي له لورې لاریون کونکو ته دمذاکراتو دعوت ورکړی شوی خو مثبت جواب ورنکړای شو ځکه چې ددې لاریون کونکو څوک مشر نشته نو څوک به مثبت جواب ورکړي.

دولت دځېزونو دارزانولو او اصلاحاتو اعلان هم وکړ خو گټه یې ونکړه ځکه چې دې نظام په ولس کې خپل اعتماد له لاسه ورکړیدی؛عراقیان پدې دولت کې دترمیم او اصلاح صلاحیت نه ویني.

شنونکي وایي چې دا لاریونونه اوس دزور یا مذاکراتو له لارې نه ختمېږي دختمېدو یواځینۍ لار یې دعبدالمهدي گوښه کېدل؛دموقتي ادارې قائمېدل او د نړۍ دبې طرفه ادارو ترڅار لاندې آزاد انتخابات کول اوبیا یو داسې اساسي قانون تیارول دي چې عراق د فرقه ایزو او مذهبي تعصباتو راوباسي او رښتیا هم عراق واحد عراق وگرځي.

# د ۲۴۶ کلني مقدسې مبارزې د اتل په یاد کې!

م نذیراحمد اخندزاده

پوره (۲۹) کاله وړاندې ۱۳۶۹/ ه ل کال زه د خیبرپښتونخوا کوهاټ سیمه کاهي کیمپ کې نعمانیه مدرسې ته ولاړم، په لومړۍ ورځ مې یو ځوان طالب ولیده، ډېر ښه راباندې ولګید، په لږ وخت کې سره ملګري شو. طالب العلم نقیب الله عزیزي ځیکرک، او ښه خوی څښتن او طاقتور انقلابي طبعیته ځوان و.

په لږ وخت کې ما او طالب العلم نقیب الله عزیزي د خپل طبعیت او فکر ډېرملګري پیداکړل، د جمعې په شپه به مو مدرسه کې جوړېدونکي تربیوي انجمن کې جهادي مقالې لوستلې او دغه راز به مو سهار و مابښام د مجاهدغږ راډیو( چې د سترجهادي شخصیت الحاج مولوي جلال الدین حقاني په ابتکار به یې له میرانشاه څخه خپرونې کولې) پروګرامونه اوریدل.

د اسلامي امارت د تاسیس په لومړیو کې د لوګر مشرانوطالبانو، لکه: شهیدمیرصاحب احمدګل هاشمي؛ شهیدمولوي محمدخوشال ملنګ؛ شهیدمولوی عبدالرحمن؛ شهیدملامشک عالم او نورو سره یوځای شو. د لوګر زیداباد، پل قندهاري، میس عینک، او د چهاراسیاب سیمو د جګړې په لومړۍ کرښه کې مو فعالیت درلود. کله چې د پکتیا ولایت سیدکرم ولسوالۍ په غرنیو سیموکې یو شمېر لاره شکوونکو سر راپورته کړ، د شهیدمولوي احسان احسان او د تحریک د مشرانو په لارښوونه، دغې ولسوالۍ ته ولاړو، څه وخت وروسته د یو بل دښمن ځپونکی برید په موخه له دغې سیمې له ډېرو جنګي مهماتو سره "سپینې شګې" ته وخوځېدو، د سپینې شګې تر بریالیو عملیاتو وروسته سمدلاسه د لوګر ازرې ولسوالۍ د زرداد، قلم، چمن او نورو شرخوښو د ځپلو په موخه ولاړو.

بیا د کابل فاتح او د شهیدانو سالار شهید ملا امین الله بورجان سره د حصارک ولسوالۍ له لارې دجلال اباد په لور وخوځېدو، د شیرزادو، خوګیاڼو او سرخرود ولسوالیو ترفتح کېدو وروسته په دوهمه ورځ د ننګرهار مرکزجلال ابادښارته ورسیدو. شهید میرصاحب ته د ملابورجان شهید له لوري هدایت وشو چې د کابل په لور له خپلوملګرو سره حرکت وکړي، دغه مهال مو د کابل په لور فاتحانه سفرپیل کړ، لومړۍ شپه مو د ګل پاچاالفت په کڅ سیمه کې د کابل د کمربند د ثقیله وسلو له قومندان امیر محمداغاسره وکړه، په سبا ورځ د لغمان له دو سرکې ورمخکې د مشال غونډېوته مخامخ وریښمین تنګي په خوله کې له دښمن سره په مخامخ جنګې کمربندکې مو پړاو وکړ، د شهیدملانقیب الله عزیزی په ګېون زموږ (۴۴) تنو ته رسیده، په کمربندکې دریمه شپه وه، د شپې یوه بجه میرصاحب ملګری ګروپ ګروپ کړل هرچاته یې خپله دنده وسپارله، قوي اوموثق راپور و، چې دک ابل رژیم د سرکاتب قندهاري او جنرال فهیم په مشرې سباسهاراته بجې د کابل ننګرهار د سرک په استقامت تعرض لري او غواړي ځانونه ننګرهارخواته ورسوي، د تشکیل دترتیب په پای کې دری کسان پاتې شول چې یوېې خپله شهید میرصاحب دوهم یې شهید ملانقیب الله و، میرصاحب ملانقیب الله عزیزی شهید د ملګرو لپاره د نظامي اکمالاتواو د جنګ له ساحې څخه د زخمیانو او شیهدانو د انتقال تومسؤل وټاکه دریم پاتې کس یې خپل معاون وټاکه.

سبا اته بجې د دښمن تعرض پیل شو، د غرمې تر دولس نیموبجوپورې دښمن هیڅ پرمختګ ونه کړ، همدا شیبه شهیدملابورجان له کنړ ولایت نه زموږکمربندته راورسیده، موږته یې د دمې لارښوونه وکړه، خپله یې د څو محدودو ملګرو په ملتیا په دښمن بریدپیل کړ، د سترګو رپ کې د دښمن مشرانو او د قومندې مرکز دتیښتې لاره ونیوله. غالبا دوهمه شپه به وه چې د فتح لښکرسروبي ته راورسیده، زرداد او توپکوالو یې سخت مقاومت

وکړ؛ خو شکست یې وخوړ، د اوزبین او تګاب خوا ته وتښتېدل، دفتح لښکرمازدیګرمهال پل چرخي څنځیرته څېرمه د لوړوغروسرونوته ځانونه ورسول، سبا سهار یې په دښمن تعرضي عملیات پیل کړل، نهه بجې شاوخوایې د پل چرخي فرقه، حربي پوهنتون او نورې سیمې فتح کړې، ورته مهال د کوه صافي له لوري تعرضي تشکیل هم د خواجه رواش سیمې ته رسېدلی و، د میس عینک لخوا تعرضي تشکیل هم د خورد کابل له لارې د مشرقي له تشکیل سره یوځای او نیمه شپه د فتح کاروان کابل ته راوورسیده او د میزان په شپږمه نیټه کابل فتح شو.

**د ارګ دروازه کې د شهید ملا نقیب الله عزیزي وینا:**

شپه سبا شوه، سهار وختي مو د غدارنجیب د اعدام شوی جسد په لیدلوتنده ماته او د کلونو ستړیا مولرې شوه، د ورځې لس بجې وې، ملګري مې په اریاناچوک کې پرېښودل، زه یوازې د ارګ خواته روان شوم، د ارګ دروازې ته ورسیدم، ناڅاپه مې په یو ځوان سترګې ولګېدې، چې د سپین موټر اشترنګ ته ناستو، لاسي ګنډل شوي سپین څادریې له سره تاوکړی، ښائیسته څښې یې په اوږوپرتې وې، دغه ځوان هاغه د نه ویشتو کلونو پخوانی د نعمانیه مدرسې ښایسته طالب العلم او د نن ورځې فاتح ملانقیب الله عزیزي و.

د کابل ترلویې فتح وروسته شهیدملانقیب الله عزیزي د کابل په شمالي سیموکې لکه چاریکار، جبل سراج، پل متک، دوسرکه،استالف،استرغچ، سنجددره،ګل غونډی، شکردره، ګلدره ،کلکان، سرای خوجه، حسین کوټ، جولانه، دکاپیسا په ،ګلبهار، جمال اغه، ګیاوه، دورنامه، بلغین، ریګ روان، افغانیه، سیاد، کوتل سورلانک ، نجراب، فچغان ،تګاب، اله سای، سکین، بدراب، د تخارولایت په پل بنګي، بهارک، تالقان، اشکمش، فرخار، د کندز، بغلان او سمنګانو په مختلفوسیموکې نه ستړیکېدونکي نظامي فعالیتونه ترسره کړل، په اخر وخت کې د اسلامي امارت دکورنیوچار د محترم وزیر په غوښتنه یې له نوموړي سره په وزارت کې دننه اوبهر په امنیتي برخوکې په زړه پورې کارنامې ترسره کړې.

**ترسقوط وروسته:**

کله چې د صلیبي یرغل په نتیجه کې اسلامي امارت سقوط وکړ، ملانقیب الله عزیزي ترسقوط وروسته په لومړیو وختونو کې عملا د صلیبي یرغل په وړاندې د خپلومبارزو ملګروپه ملتیا جهادي مبارزه پیل کړه، دغه وخت دلوګرپه مرکز او برکي برک کې زموږ د هغوملګرو شمیرچې عملادجهادسنګرته راوتلي وو(۱۷)تنه وو، ملانقیب الله عزیزي به هره شپه په مرکز او برکي برک ولسوالۍ کې دوه چریکي عملیات تنظیمول، له ماښام وروسته به یې د عملیاتو د تطبیق په موخه هره شپه لږ ترلږه له پنځه ویشتو ترپنځه دریش کلیومتره واټن پیاده مزل کاوه او دورځې به د ملګروپه تجهیز او تدریب مصروف و، چې په دغه موده کې یې په یرغلګر دښمن او د دوی په اجرتي مزدورانو لسګونه کاري بریدونه ترسره کړل، دده په خپل لاس اوابتکار د یرغلګرو ترشلوزیات زغره وال ټانګونه، رنجرموټر او نوراکمالاتي اونظامي وسائط د لوګر ولایت مرکز او برکي برک مربوطاتوکې تخریب او زیات شمېر عسکریې له مینځه یوووړل. د ډېرو کارنامو او شاهکارونو له امله دښمن مطلوب و او تل به یې د ده دنیولو او یا شهادت هڅه کوله، په لسګونه جاسوسان ورپسې وو، خو ځلې یې دده په لټه بې رحمانه، ډارنې او ناکامه چاپې واچولې.

د شهیدملانقیب الله عزیزي مدبرانه او دښمن ځپونکی نظامي فعالیت او له اخلاص نه ډک جهاد ددې لامل و، چې د سیمه ایزو مجاهدینو او مشرانو په زړونوکې خاص ځای پیداکړي او نوموړي ته یې دیوې رسمي دلګۍ د درانه نظامي مسؤلیت ترڅنګ د لوګرولایت په سطح ځینې نور درانه مسؤلیتونه هم ورکړل، داچې نوموړی په یوه نه ستړې کېدونکی مجاهد یادیده دالله جل جلاله په خصوصي مدد اودملګروپه کامله همکاري به یې د مشرانوهرامرته په کمال اطاعت لبیک ویلو او په پوره ایمانداري اومتانت به یې ورسپارل سوي مسؤلیتونه په ښه ډول ترسره کول.

**د شهید عزیزي خارق العادت کارنامې:**

(۱) په ابتداءکې چې کله په ۲۰۰۱/میلادي کال موږ د یرغلګروپه وړاندی مبارزه پیل کړه، زموږ تمرکز په چریکي عملیاتو و، دغه وخت ماله پلار نه خپل او د ملګرو فعالیت پټ ساتلی و، شهیدملانقیب څوځلې راته وویل دغه خبره له خپل والدصاحب سره شریکه کړه، زه یکې خیر وینم، مااستخاره هم کړې، هغه موږنه منع کوي، دا کارګټې لري، خو ما د ځینو وجوهاتو له کبله دی کارته زړه نه ښه کاوه، یوه ورځ خپله عزیزي

صاحب زموږکورته راغی، دغه موضوع یې مستقیماورسره شریکه کړه او ټول جریان ورته ووایه، زه سخت وارخطا شوم، خو عزیزي صاحب په سترګوکې راته ویل چې کارسمیږي اوپه ربښتیاهم کارسم شو زموږ والد صاحب چې خپله هم پخوانی جهادي شخصیت و، زموږپه فعالیت ډیرخوشاله شو، دوعاوې یې راته وکړې، لازمې مشورې اوهدایات یې راکړل په اخرکې یې اته میله کلاشنکوف یوراکیټ دوه شفیته دراکیټ مرمۍ شپږزره دکلاشنکوف مرمۍ اتلس ګیرنیټونه غالبا څلویشت دکلاشنکوف شاجورونه، دوه روسۍ برچې یو د اراکیټ دوربین، یوساده دوربین، دوه چیریکي بسترې، یوه ګیلنه زنګ نائیل تیل، شل فیره د دوه اتیاملیی متري توپ ګولۍ اونورنظامي توکي اومهمات همدغه شیبه په لاس راکړل.

(۲) یوه شپه موږ ملګرو ته مستعار نومونه خوښول، دغه نومونه: عمر، مظلوم ، احرار، حقاني ، بلال ، خادم ، طیب، ذاکر، مطمین ، جواد وو، ټول موپه کاغذ ولیکل بیامو دقرعه کشۍ په شکل یوه ملګري ته ورکړل چې یو یو راپورته اویوه کس ته ورکړي، عزیزی وویل که ذاکرنوم مې په برخه نه شي، بل نوم نه غواړم، یوه بل ملګري هم داخبره وکړه اوځانته یې ذاکرخوښ کړ، خوبخت له عزیزي سره یاري وکړه، دغه نوم یې په برخه شو، هغه بل ملګری د دوهم ځل قرعه کشۍ غوښتنه وکړه، بیاهم د ټولونومونو له منځ نه ذاکر د عزیزي په برخه شو، د دریم ځل غوښتنه وشوه، په دریم ځل هم ذاکرمستعارنوم دعزیزي په برخه شو، چې له دې وروسته بیاهرملګري په مستعارنوم یاداوه.

شهید ذاکرچې له مدرسې ترسنګره او له سنګره ترشهادته له موږسره پوره ۲۹ کاله له غیرت، میړانې، متانت او اتلولۍ ډک ژوند تېر کړ، په لسګونه تاریخي یادګارونه اوله کرامت نه مالمال واقعات یې موږته پریښي دي، د مضمون محتوا او د لوستونکي وخت په نظرکې نیول ضروري دي؛ نو د دغه مضمون د معنوي درښت دپاره یې همدومره کافي بولم.

دا چې هره کارنامه یې د لیکلو اوتاریخ کې د ثبتولو وړ ده او باید څوبرابره د سروزرو په قیمت وتلل شي او راتلونکی نسل او اتلومجاهدینوته د یوې قیمتي ډالۍ او له صبر، استقامت، میړانې او قربانۍ نه ډک ښه جهادي میراث او لاربښود وګرځي؛ نوپاتې کارنامې او یادګارونه به یې یو یو د ملګرو او مجاهد اولس مخ ته وړاندې کوو ان شاءالله.

شهید ذاکر سږکال د لوی اخترپه دوهمه ورځ د پادخواب شانه په شهیدپالونکې سیمه کې له خارجي اشغالګرو سره په یوه مخامخ غزاکې دښمن ته تر درانه مالي او ځاني زیان اړولو ورسته د خپلو سپیڅلو ارمانونو دتحقق سنګر د یوه درانه او قیمتي میراث په ډول موږته راوسپاره اوخپله یې د اخري ارمان د پوره کیدوپه غرض د شهادت برې لیک په لاس، د لوی څښتن په لور وکوچیده. حسبناالله ونعم الوکیل.

د شهید ذاکر د ښواخلاقو، قوي عزم، لوړمرال، شجاعت او له خپل مسلمان، دردیدلي او مجاهد اولس سره بې ساري مینې او نیکې رویې له کبله دده شهادت د لوګر او په ځانګړې ډول دبرکي برک او مرکز ځوریدلی مجاهد اولس سخت خپه او د یوه نه جبرانیدونکي غم په ټغرکښېنول.

ستا دیوه سنګر ملګری ترتا وروسته ستا د لارې لاروی ستا
مولوي نذیراحمد اخندزاده: لوګر/ ۱۴۴۰/ هق ذالحجة الحرام

## ملګري شهید ته:

زما له خپل کتابه ډالۍ

ستا د هجر شپې اوږدې شوې ځکه ژاړم
د امید مراندې مې پرې شوې ځکه ژاړم

د وطن د غرو لمنوکې دې ګورم
رانه ورکې ستارې شوې ځکه ژاړم

که رڼاوه ستا د تورو د بریښنا وه
اوس په تلو دې تورې شپې شوې ځکه ژاړم

د کړاو ژوند ته دې پرېښودم یواځې
شپې او ورځې مې ترخې شوې ځکه ژاړم

نذیراوس هم غرو رغو کې لالهاندیم
ستا د حوروسره شپې شوې ځکه ژاړم



# د تعزیر قیام د چا مسؤلیت دی؟

مفتي عبدالله

د حاکمي طبقې لپاره تر ټولو اړینه خبره دا ده، چې د خپل مسؤلیت پولي وپېژني، کله نا کله له سرې داسي کارونه تر سره شي، چې د ده د مسؤلیت تر دائره دباندې وي، خو چونکي دی ځان له حاکمي طبقې څخه شمېري او د خلکو اصلاح د ځان مسؤلیت ګڼي پر دې بنا یو داسي کار ترینه صادر شي، چې شرعا دی په خپله ورباندې مجرم وبلل شي، او د خیر پر ځای شر ترینه جوړ شي، د اصلاح پر ځای فساد شي، او عملا د تجربې له نګاه که په ځومره ښه نیت سره تر سره شي، بیا یې هم اثر منفي ځکه وي، چې د شریعت خلاف عمل دی ، او په ناروا کې د نیت ښه والی هیڅ اثر هم نکوي.

نو له دې امله تر ټولو اړینه خبره دا ده، چې موږ دا وپېژنو چې مجرم ته تعزیر څوک ورکولای شي او د چا مسؤلیت دی؟

**په حقیقت کې د جرم دوه حالت دي:**

اول: د جرم په دوران کې حالت، دوهم: د جرم له تر سره کولو وروسته حالت. په اوله مرحله کې هر څوک کولای شي، چې مجرم له جرمه منع کړي، او تعزیر یې کړي، او په دوهمه مرحله چې له جرمه وروسته حالت دی، دا حالت یوازي تر حاکم پوري اړه لري، ولي چې اول حالت ته نهي عن المنکر ویل کېدلای شي، او دوهم حالت (یعني د ګناه له تر سره کېدلو وروسته) خو نهي عن المنکر متصوره کیدلای نشي، نو لهذا دا مرحله د تعزیر ده، او تعزیر یوازي حاکم قایمولای شي.

علامه سغدي رحمه الله تعالی وایې: تعزیر یوازي د سلطان حقّ ده. النتف في الفتاوی للسغدي (۲/ ٦٤٦).او په مبسوط کې علامه سرخسي رحمه الله تعالی لیکي: د تعزیر قیام د امام کار دی. المبسوط للسرخسي (۹/ ٦٥).

علامه وهبة الزحیلي رحمه الله فرمایې: چې تعزیر تر امام پوري اړه لري، له ده (امام) نه علاوه بل هیڅوک هم د تعزیر حق نلري، البته پلار نا بالغ زوی، مولا غلام او مېړه میرمني ته تعزیر ورکولای شي. الفقه الإسلامي وأدلته للزحیلي (۷/ ٥٦٠٦).

له دې نه هم په تفصیل سره علامه ابن نجیم رحمه الله تعالی داسي وایې : قالوا لکل مسلم إقامته حال مباشرة المعصیة، وأما بعد الفراغ منها فلیس ذلك لغیر الحاکم قال في القنیة رأی غیره علی فاحشة موجبة للتعزیر فعزره بغیر إذن المحتسب فللمحتسب أن یعزر المعزر إن عزره بعد الفراغ منها قال - رضي الله عنه - قوله: إن عزره بعد الفراغ منها فیه إشارة إلی أنه لو عزره حال کونه مشغولا بالفاحشة فله ذلك وأنه حسن؛ لأن ذلك نهي عن المنکر وکل واحد مأمور به وبعد الفراغ لیس بنهي عن المنکر؛ لأن النهي عما مضی۔ لا یتصور فیتمخض تعزیرا وذلك إلی الإمام. اهـ. البحر الرائق (٥/ ٤٥).

د ګناه د مباشرت په حالت کې هر مسلمان کولای شي، چې مجرم ته تعزیر ورکړي او له جرمه یې را وګرزوي، ولي چې نهي عن المنکر د هر مسلمان مسؤلیت دی، او د جرم له ترسره کېدلو وروسته یوازي امام او د هغه د نائب کولای شي، چې تعزیر قایم کړي، نو که یو څوک مجرم ته د جرم له ترسره کېدلو وروسته تعزیر ورکړي، امام به هغه ته تعزیر ورکوي، ولي چې د جرم له ترسره کېدلو وروسته د نهي عن المنکر تصور نشي۔ کېدلای او تعزیر خو د امام حق او یا د هغه د نائب حق دی.

نو حاصل دا دي: چې د ګناه د کولو په حالت کې هر مسلمان هغه که حاکمه طبقه وي، او که بل څوک وي، کولای شي، چې مجرم ته تعزیر ورکړي، ولي چې دا د نهي عن المنکر حالت او نهي عن المنکر د هر مسلمان ذمه واري ده، او یو مجرم

ته د جرم له ترسره کېدلو وروسته سزا ورکول او یا تعزیر ورباندي قایمول دي، هغه یوازي د امام یا قاضي او یا د هغوی د نائب حق ده. خو که یو څوک د خپل مسؤلیت تر پولو واوړي او د حاکم له امره بغیر یو چا ته تعزیر ورکړي، نو دغه سړی په خپله مجرم او د تعزیر مستحق دی.

### که غیر مسؤل شخص مجرم ته تعزیر ورکړي؟

د جرم د تر سره کولو وروسته کله چې حاکم یا د هغه قاضي ته دعوا وړاندي شي او دعوا د اصولو سره سم ثابته هم شي، او په شریعت کې د داسي جرم په مقابل کې حد هم مقرر نوي، نو پر حاکم باندي واجب ده، چې مجرم ته تعزیر ورکړي، نو که له حاکم، قاضي او د دوی له نائبه پرته بل حکومتي شخص یو مجرم ته سزا یا تعزیر ورکړي، نو د شرعي اصولو مطابق دا شخص په خپله مجرم بلل کیږي، او باید سزا او تعزیر ورکول شي.

داماد افندي رحمه الله لیکي: ویقیمه کل مسلم حال مباشرة المعصیة وبعدها لیس ذلك لغیر الحاکم حتی لو عزره بعد الفراغ منها بغیر إذن المحتسب فللمحتسب أن یعزر المعزر. مجمع الأنهر في شرح ملتقی الأبحر (۱/ ۶۰۹).

یعني: د ګناه په جریان کې د هر مسلمان مسؤلیت دی، چې منکر دفع کړي، خو د جرم د ترسره کولو وروسته یوازي د حاکم مسؤلیت دی، چې مجرم تعزیر او زجر کړي، که یو څوک د محتسب یا حاکم له اجازته پرته مجرم ته سزا ورکړي، نو دې سړي ته به په خپله تعزیر ورکول کیږي.

نو حاصل دا دي: چې که په حاکمه طبقه کې هغه څوک چې د مسؤل امیر له خوا ورته مسؤلیت نه وي سپارل شوی، او بو چا ته د اصلاح په نیت د تر سره شوي جرم سزا ورکړي، نو د شرعي جزائي قانون مطابق په خپله دې سړي ته به تعزیر او سزا ورکوله کیږي.

### د نهي عن المنکر او تعزیر په منځ کې فرق:

د یادو دوو مسئلو (نهي عن المنکر او تعزیر) په منځ کې فرق پېژندل تر ټولو مهمه خبره ده، ولي که یو څوک د نهي عن المنکر او تعزیر په منځ فرق ونکړای شي، نو ضرور به خطا کیږي، او د نهي عن المنکر په نیت به تعزیر قایمه وي، چې دا کار په خپله یو جرم دی.

### د جرم د ترسره کولو درې مرحلې دي:

اول: د جرم تر وقوع وړاندي، په دغه حـــــــالت کې باید مسلمان ته دعوت ورکول شي، چې په راتلونکي کې له ګناه څخه ځان وژغوري، دا (دعوت) د هر مسلمان وظیفه ده.

دوهمه: د جرم د ترسره کولو په دوران کې، دا حالت د نهي عن المنکر دی، دا هم د هر مسلمان وظیفه ده چې باید تر سره یې کړي.

او دریمه مرحله: هغه د جرم د ترسره کېدو وروسته حالت دی، چې دې حالت کې یوازي د وخت حاکم کولای شي، چې مجرم ته سزا ورکړي، زجر ورکړي، چې د مجرم او د ټولني اصلاح ورباندي راشي.

ډیری خلک ګومان کوي، چې د نهي عن المنکر د حکم مطابق هر څوک کولای شي، چې له جرمه وروسته هم یو مجرم ته تعزیر او یا سزا ورکړي، خو دا خطا فکر ده، ولي چې د جرم د ترسره کېدلو وروسته خو نهي عن المنکر متصور کېدلای نشي.

نو حاصل دا دي: چې عام مسلمانان او عامّه حاکمه طبقه کولای شي، چې د جرم تر وقوع وړاندي په دعوت او تبلیغ سره د جزم مخنوی وکړي، او د ګناه او یا د جرم په حالت د نهي عن المنکر د حُکم پر بنا هر مسلمان مکلف ده، چې د مجرم مخنوی وکړي، البته د ګناه او جرم د تر سره کېدلو وروسته پر جرم باندي د سزا ورکول یوازي د حاکم، قاضي او یا د هغه چا مسؤلیت دی، چا ته چې حاکم یاد مسؤلیت سپارلی وي.

علامه ابن نجیم رحمه الله تعالی وایي: قالوا لکل مسلم إقامته حال مباشرة المعصیة، وأما بعد الفراغ منها فلیس ذلك لغیر الحاکم. قال في القنیة رأی غیره علی فاحشة موجبة للتعزیر فعزره بغیر إذن المحتسب فللمحتسب أن یعزر المعزر إن عزره بعد الفراغ منها قال – رضي الله عنه – قوله: إن عزره بعد الفراغ منها فیه إشارة إلی أنه لو عزره حال کونه مشغولا بالفاحشة فله ذلك وأنه حسن؛ لأن ذلك نهي عن المنکر وکل واحد مأمور به وبعد الفراغ لیس بنهي عن المنکر؛ لأن النهي عما مضی۔ لایتصور فیتمخض تعزیرا وذلك إلی الإمام. اهـ البحر الرائق: (۵/ ۴۵).

یعني: که یو څوک په فحاشي باندي مشغول وي، نو د هر مسلمان وظیفه ده، چې د نهي عن المنکر د حُکم پر بنسټ یې منع کړي، او تعزیر ورکړي، خو د فحاشي د تر سره کولو وروسته بیا د نهي عن المنکر حُکم ندی باقي، ولي چې د ګذشته څخه نهي ممکن نده، البته یوازي تعزیر باقي دی، چې هغه د حاکم او د هغه د نائب وظیفه ده.

# دالله ددین له پتنګانو سره

# د مرستې اثرات

مفتی سیدشفیع الله سادات صاحب

امام طبري (رح) لیکلی چې مونږ په هندوستان کی په مدرسه کی سبق ویلؤ، د سبق په دوران کی راسره مصرف خلاص شو، نو بستری مو وتړلی چی مخ په کور روان شو، نو د مدرسی په مخ کی د یوه یهودی دوکان وه، دهغه راباندی نظرشو، راته یی ویل طالبانو ولی مو بستری تړلی؟

امام طبری وایی چی مونږ ورته وویل خرچه راسره خلاصه شوه کورته ځو، نو هغه یهودی راته وویل سبق مو خلاص شو کنه؟

امام طبری وایی چی مونږ ورته وویل چی نه !

نو دی یهودی راته وویل بیرته لاړ شی چی څومره خرچه مو چی کیږی په دی کال کی زه به یی درکوم.

امام طبری وایی چی مونږ ورته بطورِ تعجب وویل: ته یهودی یی او مونږ مسلمانان یو ته څنګه له مونږ سره کومک کوی؟

دې یهودی راته وویل چی زه هم په یو اسماني کتاب ایمان لرم چی تورات ده، اوتاسو هم په اسمانی کتاب ایمان لری چی هغه قرآنکریم دې، نو دواړه د الله تعالی کتابونه دی زه دالله د رضا په خاطر له تاسو سره کومک کول غواړم نو امام طبری صاحب وایی چی مونږ ددی یهودی دوینا مطابق واپس شو او پوره کال سبق مو وویل، چی کله ددرس نه خلاص شو نو د یهودی نه موخدای پامانی واخسته اولاړو.

ډیر وخت پس زه حج ته لاړم چی ګورم په یو ځای کی دغه یهودی ناست ده، اوشک می پرې راغی چی داکس خومی چرته لیدلی !

نو غلی غوندی پوښتنه می ترینه وکړه چی باباخفه کیږی خو به نه چی یوه پوشتنه درنه وکړم نو بابا راته ویل نه بچیه وایه !

ما ورته وویل ته د هندوستان دفلانی علاقی خو نه یی؟

بابا وویل چی یم.

بیامی ورته وویل دمدرسی خواته خوستا دوکان نه وه بابا وویل چی بالکل هو.

نو بیامی ورته وویل بابا ته خویهودی وی نوته څنګه حج ته راغلی یی یهود خوحج نکوی؟

بابا راته وویل یهودی وم خو الله پاک راته ایمان نصیب کړ.

امام طبری وایی چی بیائی له مانه پوښتنه وکړه چی ته څوک یی؟

ما ورته وویل زه هغه طالب یم چی خرچه راسره خلاصه شوی وه، او تابیرته واپس کړو، او د ټول کال مصرف دی مونږ ته راکړ.

امام طبری فرمایی چی دا شخص راجګ شو او د سترګو نه یی اوښکی لاړی، را ته یی وویل چی ستاسو دکومک په وجه ایمان مونګ ته نصیب شو.

او بیا یی قصه راته وکړه چی په کومه ورځ می تاسو سره کومک وکړو نوپه دغه شپه می محمدمصطفیﷺ په خوب ولیده چی یو خایسته سړی مونګ کره راشی او زمونګ په کور کی یو دم رڼا شی چی د مخ نه ئی نور ښکاره کیده نو خپل ګمان می داسی راغی چی دا د مسلمانانو پیغمبر ده دا بل څوک نه شی کیدلی نو ورمنډه می کړه چی د الله رسولهﷺ ته څنګه مونګ کره راغلی؟

نو راته یی وویل چی تا زما د دین طالبانو سره مرسته کړی نو تاته خوشخبری درکوم چی زمونګ په کتاب کی ستا د ایمان د جنتی کیدو فیصله شوی ده.

نو فوراً پاسیدم ښځه می راویخښه کړه، او په تیزی می ورته وویل چی پاڅه، زړه می وه چی دا د خوب قصه ورته وکړم ، نو ښځې می راته وویل سړیه؟

ډیر ښه خوب می لیده را باندی خراب دی کړو، ما لا خپل خوب نه وه ورته ویلی، د میرمنی می پوښتنه وکړه چی څنګه خوب وه ؟ نو هغی راته هغه شان خوب بیان کړو، څنګه چی ما لیدلی وه، ان تردی چی دا یهودی وایی چی په دغه وخت کی مونږ په کورکی ۱۷ کسان وه دی ټولو هم دا یوشان خوب لیدلی وه.

نوپه شریکه مو ټولو ایمان راوړ. سبحان الله.

# د نوموتي شهيد مولوي حميد الله خبيب ژوند ته کتنه

د نړيوال طاغوت پر وړاندې يو بې وسلې لښکر د خدای په اسرې او هيله ميدان ته راووت خو د نمرود او ابراهيم، موسی او فرعون، بالاخره محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم او ابو جهل په څير يې د خالي لاس او په وسلو بار ځواک د مقابلې يو مثال پريښود او دا يې ثابته کړه چې حق تل بريمن وي که څه هم له مادي پلوه ډير کمزوری خو په معنوي لحاظ لامثاله او نه ماتيدونکی لښکر وو.

دغه لښکر چې کفري نړۍ ورته د ځمکې په سر د ژوندانه حق نه ورکولو، خو د بې ساريو سربښندنو او فداکاريو په بدل کې يې دغه ياغي او باغي جهان پښنو ته راټيټ او د يو ځواک په توګه يې ځان پرې ومنلو.

ووکې همدغه زلمي وو چې د اسلام او مسلمانانو برم او غرور يې پر ځای، متين هوډ او کلک عزم يې هيواد او هيوادوالو ته عزت ورکړ، په سادګۍ يې نړۍ غلطه خو د معنوي زيرکتيا او هوښيارتوب يې يو بل تاريخ کيښود او دا يې د طالب په نوم د تاريخ په کتاب کې زرين باب په توګه خلاص کړ.

لاندې له دغو زلميو څخه د يو تن زلمي مولوي حميدالله چې په خبيب يې شهرت درلود ژوند ته کتنه کوو خو دا چې د هغه ژوند ټول زرينه کارنامه او هره ورځ يې د کارنامو يو داستان دی نو دلته يې په هغو بساينه کوو چې قلم، کاغذ او وخت مو اجازه راکوي.

**زوکړه او پيژندنه:** شهيد مولوي حميدالله خبيب د محمد نعيم ځوی او د محمد کريم لمسی چې په (۱۳۶۳ هـ ش) کال يې د لوګر ولايت مرکز پل عالم په نيازيو کلي کې په يوه ديندار او علمي کورنۍ کې دې فاني نړۍ ته سترګې وغړولې.

**زده کړې:** نوموړي خپلې لومړنۍ زده کړې د کلي له ملا امام څخه پيل کړې چې له څه وخت زده کړو وروسته د لوګر مرکز دادوخيلو د مولوي خوشال ملنګ جامعه دارالعلوم فاروقيه مدرسې ته د زده کړو لپاره يې مخه کړه او تر کافيې نورالانوار پورې زده کړې يې هلته وکړې چې همغه وو په افغانستان غربي يرغلګرو يرغل راوړ او د هيواد اکثره مدارس وتړل شول چې وروسته يې د نورو زده کړو لپاره د هجرت ديار پاکستان په لور مخه کړه او د پيښور نوښار ته څيرمه په خيراباد دارالمساکين قدسيې کې يې اکثره زده کړې ترسره کړلې.

شهيد خبيب تقبله الله وروستنۍ زده کړې لويه دوره د پاکستان په زرګري کې د هيواد له نامتو او مشهور شخصيت مرحوم شيخ القران والحديث عبدالستارجان صيب څخه وکړه.

**جهاد او مبارزه:** په افغانستان د امريکا يرغل نه وو پيل شوی په هيواد کې د شر او فساد په وړاندې طالبانو جهاد پيل کړی وو هغه مهال په لومړيو کې شهيد خبيب تقبله الله لا د ځوانۍ تر پوړه نه وو رسيدلی خو د طالبانو د واکمنۍ په وروستيو دوه کلونو کې يې د جهاد شوق او جذبه پرې غالبه چې همدې جذبې آن تر پکتيکا بوتلو او هلته يې د طالبانو ليکو ته ځان ورسولو.

د اشغال د پیل لومړی ورځې وې په مدرسه کې یې درس ویلو خو چې کله امریکایي یرغلګرو په هیواد یرغل وکړ نوموړي شهید خپل کتابونه کت او د جهاد سنګرونو ته یې یو ځل بیا ودانګل چې په دې توګه تر کونړ ورسید، همغه وو چې د طالبانو نظام سقوط د طالبانو لښکر خور او ظاهرا مات شو نوموړي شهید بیا د مدرسې په لور مخه کړه او خپلې پاتې زده کړې یې ترسره کړې.

د اشغال دریم کال وو طالبانو په ځینو ولایتونو کې یو ځل بیا خپل ظهور شکاره کړ چې لوګر هم د دغو ولایتونو په لست کې وو د طالبانو خواره عسکر پکې سره په راټولیدو شو او وخت نا وخت به یې د غربي یرغلګرو او د هغوی د مزدورانو په وړاندې بریدونه کول چې شهید خبیب تقبله الله هم د اشغالګرو په خلاف زنګ وهلي توپک ته لاس او ځان یې د شهید مولوي امرالله رهبر تر قوماندې لاندې یو ځل بیا تر سنګرونو ورسولو.

هغه تقبله الله په خپلو همسنګریانو ملګرو کې ډیر زر په یو ښه نښه ویشتونکي راکټچي شهرت تر لاسه کړ چې په هر کمین کې به یې خامخا ټانګ ویشتلی وو.

د شهید خبیب یو ملګری وایي لومړی ځل مو وو د لوګر مرکز علي خان کلا سیمې ته د کمین لپاره راغلو څو شیبې ناست وو چې د امریکایانو ټانګونه راغلل شهید خبیب ویل مخکې مې په راکټ ډز ندی کړی خو ښه درس مو د راکټ ویلی دعا کوه چې الله جل جلاله یې برابر کړي.

هغه وایي همدا وو چې ټانګونه راورسیدل او شهید خبیب تقبله الله په لومړي ځل د امریکایانو ټانګ و ویشت چې د خوشالۍ څخه یې بار بار الله اکبر نعرې وهلې.

نوموړي شهید به تل د غربیانو په ټانګونو برید کې ضرور یو ټانګ ویشتلی وو چې په دې توګه هغه په یو مسلکي راکټ ویشتونکي مشهور شو او له شلو څخه به یې زیات ټانګونه ویشتلي وي.

شهید خبیب تقبله الله څو څو ځله په داسې ځایونو کې بند راغی چې شهادت به یې ظاهرا حتمي معلومیده خو د خپلې زیرکتیا او فداکارۍ له امله به د خدای جل جلاله په نصرت روغ رمټ را و وتلو او دښمن ته به یې دروند زیان واړولو.

په تیر ۱۳۹۷ کال کې کله چې خبیب تقبله الله دلوی اختر په ورځو کې کور ته د مورکۍ سره اختر مبارکي لپاره لاړ دا چې د هغوی کور دکابل ګردیز په لویه لار د سرک غاړې ته دی د غربي اجیرانو مختلفو ارګانونو په یو لوی شمیر کې عسکرو پرې غدۍ وروړه نوموړی خالي لاس وو خو ځان یې د هغوی ګوتو ته ورنکړ په خپله زیرکتیا خدای ج روغ رمټ تر خپلو ملګرو راورسولو.

**اسارت:** شهید حمیدالله تقبله الله څو کاله وړاندې دکور تر څنګ د ملي امنیت ځواکونو ونیولو او په دې توګه یې د هغوی تر شکنجو او ربړونو لاندې څلور میاشتې تیرې کړې چې تر پایه یې پر خپل نوم اقرار ونکړ او تر څلور میاشتني زندان وروسته د الله جل جلاله په نصرت راخلاص او بیا یې خپله مبارزه پیل کړه.

**شهادت:** شهید خبیب تقبله الله د (۳۵) کلونو په عمر کې د (۱۳۹۸ هـ ش) کال د سرطان میاشتې په ۲۴ نیټه د دوشنبې پر ماښام د امریکایي ډرون الوتکې په ګوزار له څو تنو نورو ملګرو سره یوځای د شهادت جام نوش، د اجل داعي ته یې لبیک و وایه او خپل روح یې حقیقي مالک ته وسپارلو.

روح دې ښاد او یاد دې تل تر تله وي

انا لله و انا الیه راجعون



# رښتينی مجاهد څوک دی؟

وعن أبي موسى رضي الله عنه أن أعرابيا أتى النبي صلى الله عليه وسلم فقال: يا رسول الله الرجل يقاتل للمغنم، والرجل يقاتل ليذكر، والرجل يقاتل ليرى مكانه، وفي رواية: (يقاتل شجاعة، ويقاتل حمية)، وفي رواية: (يقاتل غضبا) فمن في سبيل الله؟ فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم: (من قاتل لتكون كلمة الله هي العليا فهو في سبيل الله) [متفق عليه].

ژباړه: له حضرت ابوموسی رضی الله عنه څخه روايت دی چې يو کوچی نبي عليه السلام ته راغی او ورته ويی ويل: ای دالله رسوله[صلی الله عليه وسلم] يو سړی د غنيمت په خاطر جنګيږي او يو سړی ددې لپاره جنګيږي چې دخلکو ترمنځ يادشم او يو سړی ددې لپاره جنګيږي چې خلکو کې زماځای معلوم وي،په يوه روايت کې دي چې يو سړی دزيات دلاورۍ له امله جنګيږي او يو سړی دحميت او قوميت له امله جنګيږي او په يوه روايت کې دي چې يو سړی دقهر او غصې له امله جنګيږي،نو کوم يو په دغو کې دالله په لاره کې دی.نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل: څوک چې ددې لپاره جنګيږي چه دالله کلمه لوړه شي، نو دغه کس دالله په لاره کې دی.



له شمشاد تلویزون سره د اسلامي امارت د ویاند محترم

# ذبیح الله مجاهد د مرکې عمده ټکي

**داسې نه شي کیدای چې دلته دې بهرنی الوتکې ګرځي او موږ دې حاشیوي موضوعاتو (کابل اداري سره خبرو) ته لاړ شو او اشغال دې پر ځای پاتې وي**

- موږ د مذاکراتو په برخه کې خپل مسؤلیت سرته رسولی دی دا چې امریکایي اشغالګر له خبرو شاته شول په دوی پورې اړه لري.
- څومره چې موږ ته ممکنه وه، مشـــــروع وه، د جګړې او ســـولې په دواړو برخو کې مو مسؤلیت ادا کړی دی.
- د هیواد د آزادی لپاره وسـلواله مبارزه زموږ حق دی او موږ به دې مبارزې ته دوام ورکوو.
- د مقابل جهت له لورې هر څه تحمیل شوي، د دوی په بمباری او وحشت کې تغیر ندی راغلی، دوی وحشـت ډیر کړی، جګړه یې ډیره کړې، نو موږ هم متقابلاً په دې برخه کې بریدونه زیاتوو.
- کله چې دلته بهرنی اشغال او موانع موجود وي باید هیڅ دا سوال پیدا نشي چې د کابل ادارې سره دې خبرې وشي.
- داسې نه شي کیدای چې دلته دې بهرنی الوتکې ګرځي او موږ دې حاشیوي موضوعاتو ( کابل اداري سره خبرو ) ته لاړ شو او اشغال دې پر ځای پاتې وي.
- دا خبره باید واضحه وي چې موږ د کابل اداره د یو نظام په حیث نه پیژنو، ځکه چې په وړاندې یې شرعي او حقوقي ستونزې شته.
- باید واضحه وي چې هیڅ مجاهد به په قصدي شکل باندې کوم ملکي کس ته زیان واړوي.
- په تخار او پکتیکا کې چاودنې قصدي اعمال ندي، په تخار او پکتیکا کې دواړه پخواني ماینونه انفجار شویدي ، خو له دې دواړو پېښو څخه یې ننګه غلیم د مجاهدینو پر ضد تبلیغاتي استفاده کوي.
- کله چې اشـغال موجود وي، کفري قوتونه په هیواد وي، شرعاً دا مجاز نده چې څوک له دوی سره متارکه وکړي، دا یوه شرعي مسـئله ده، دا زموږ په اختیار کې ندی چې جهاد ودروو.
- څوک چې د اوربند غوښـتنه کوي، د دوی مقصـد دا دی چې دوی د اشـغال لپاره کار کوي، او د اشغال پاتې کیدل غواړي ، دا هیڅوک اجازه نلري، شرعاً مجاز نلري.
- موږ د جنګ ځواب په جنګ ورکوو او د منطق ځواب په منطق ورکوو!
- موږ په امریکایي لوري هیڅ باور نلرو. له امریکا سره بیا خلې خبرو کې موږ دقت کوو که چیرې دوی صادقانه راشي موږ ورته تیار یو. زموږ دریځ بیا هم پخوانی دی.
- د غني تګلاره د نوموړي شخصي نظر ؤ کومه تګلاره نه وه.دغه شخصي نظریاتو ( د غني تګلارې ) ته موږ نه غواړو غبرګون وښیو او هغه مهم هم ندي.
- د غني اداره یوه لاسپوڅې اداره ده، په داسې یو حالت کې دې ادارې ته مـــــشروعیت ورکول او ورسره خبرې کول دا د افغانستان له تاریخ سره جفا بولو.
- د کابل اداره د بندیانو د خلاصـــون واک نلري، په دوی پورې اړه نلري، نه دومره قوت، صلاحیت او واک لري.
- د امریکا مذاکراتي ټیم یو ارتباطي چینل زموږ له مذاکراتي ټیم سره خلاص پاتې دی.

